لیک لیکنه
(یالیکونه سرلیکونه)
مراسلات

# لیک لیکنه

یا

(لیکونه سرلیکونه)

# مراسلات

ژباړونکی: نجم الرحمن مزاج




ناشر
آریانا کتب خانه دهکی نعلبندی
قصه خوانی بازار پشاور
فون نمبر ۲۱۳۲۶۳

# ليك ليكنه

## (يا ليكونه سرليكونه)

# مراسلات

ژباړونكى : نجم الرحمن " مواج"

پته : آرياناكتب خانه ډهكى نعلبندى
قصه خوانى بازار پشاور
فون نمبر ۲۱۳۲۶۳

# سریزه

اریاناکتب خانه دخپل کار له پیل نه تردی ډمه زیار ایستلی چی دډول ، ډول ګټورو کتابونو په خپرولو خپلو وطنوالوته تروسی پوری چوپړترسره کړی .
داکتب خانه برسیره پردینی کتابونو چی دعلمای کرام اوطالب العلمانو لپاره اوهم ، خپرنیز کتابونه یی په پښتواودری ژبواوهمداراز دانګلیسی ژبی ډول ډول دیکشنری ګانی خپری کړی چی دلوستونکواومینه والو تږوه‌پری ماتیږی .
اوس چی په ګران هیواد افغانستان کی دسولی نو اخوره ده اوکه خبروی دا نوابه سرتر سری شی او دوطن په ګوټ ، ګوټ کی به دملی بیا رغاونی انګازی په کلیو، باندو اوغرورغواوښارونوکی خوری شی، لازمه ګڼی دوخت غوښتنی سره سم دنور وارزښتناکوکتابونو په خپرولوی لاس پوری کړی .
دادی دهمدی ژمنی پرپل تلګ کوی اونوی عنوان کتاب چی لیک لیکنه اویاتولوته مراسلی په نوم

یادیږی اودښاغلی نجم الرحمن مواج په هاندوهڅه ژباړل شویدی درنو لوستونکوته وړاندی کیږی .

داریاناکتب خانه خپله دنده کڼی چی دخپلوهاندو هڅوپه نتیجی کی دکتاب مینه والوته په هری برخی کی راز ، راز کتابونه خپوکړی اودهیواد دفرهنګ په بیارغاونی کی لږترلږه خپله دنده ترسره کړی .

# په افغانی مینه

پته : آریاناکتب خانه دمهکی نعلبندی

قصه خوانی بازار پشاور

فون نمبر ۲۱۳۲۶۳

# ډالۍ

داژباړلې اثرمې دپښتولرغونې ژبې ډیر ومنلواونه هیرونکو ارراښادواستادانو هریوه علامه عبدالحی (جیبی) ګل پاچا "الفت " صدیق الله رشتین قیام الدین خادم اوعبدالروف بینوا هغوادبی هاندو هڅوته چې ادبی څېړ نېزه پانګه او تومنه یې موږ ته ستروپاړ ونه په برخه کړې او دهغوی پرلیکه تګ اوسنی اوراتلونکی هر قلموال ، قلمپال اودوښان ضمیره روښانفکرورته دزړه په مینه دقدد پرسترګه ګوری ډالۍ کوم

ن . هواج

د

# دټولو لپاره

- لیك لیكنه
- دلیكونو دسرلیك لاري
- كورنی لیكنی
- دوستانه لیكنی
- رسمی او اداری مراسلی
- غوښتنلیكونه
- اعلانونه
- مبارکی ګانی
- تسلاګانی
- او دهغوی ځوابونه
- **تألیف:** احمد
- **ژباړونکی** : نجم الرحمن : مواج
- **ادَیت** : ګلانه . مواج

6

# ځانګړ تياوې

دکتاب نوم : ليك ليكنه او مراسلې
تاليف : احمد
ژباړونکی : نجم الرحمن " مواج"
کمپوزر : ميرزاخان "صديقي"
خپرونکی: موسسه نشرات آريانا
ادرس: ډهکی نعلبندی قصه خوانی فون 213263

# فهرست




## کورنی لیکونه

مهربانی موری

ترسلام وروسته چی همدا اوس می قلم په لاس کی اخیستی او غوارم تاسوته لیك ولیکم . داسی بریښي چی په زړګونه متره واټن چی ستاسواوزما ترمینځه شته له منیځه تللی او زما تر څنګه ناسته یاست او پر خپلو مینه ناکوسترګو ماته ګوری .

اوس شپه ده او زما هم ټولګي ټول دلاژموکارونو او دمابنام ترډوډی وروسته ویده شویدی . له لری ځایه دشپی مارغه غمناکه غږدشپی مبهم اواسرار لرونکی سکوت ړنګوی او زمادغوږونو له پردی سره لوبی کوی . زما ټول آشنایان ویده دي او زه دشپی په زړه کی یوازی او ځانته یم . اما ځان یوازی نه احساسوم . مګر همداسی نده چی همدا اوس تاسی زماتر څنګه ناسته یاست ؟

مور جانی . لکه څنګه چی دومره مقدمه لیکم او ژرترژره اصل مطلب ته نه راځم ماته ګوته مه نیسی . آخرڅرنګه چی انسان کله ډیر خوښ وی نه شي کولای په سمه توګه ځان وځاری اوخوښی دیوی لنډی مودی لپاره دهغه دبدن ټوله دستګاه اخلالوی !

ګرانی موری ، داچی دشپی پـه دی وخـت کـی دوېده کېدلوپرځای قلم او کاغذمی پـه لاس کی را آخیستی او تاسوته لیك لیکم ددی لپاره ده چی تاسوهم په خپلې خوښی کی شریك کړم .
او تاسوته اطلاع درکړم چی دژوندون دبی پایه بوختیاو او ستونز وسره سره پـه آزماینو کی بریالی شوی یم. موری زه ښه یم هیله من یم تاسو هم ډیرژرزمادکوچنی او نازنینی خور له بریا لیتوبه راته ولیکی .

ستاسومبارك لاسونه ښکلوم ستاسوزوی ....

## ګرانه بچیه

دپنجشنبی پـه ورځ دمینـی ډك لیـك دی زمـوږ لاس تـه ورسید او ستادبریالیتوب خوښونکی خبریوځل بیا زموږ غم لړلی‌کورته یی په خوښی کی ډوبه کړه .
ای کاشکی چی ته پخپله دلته وای او پخپلوسترګودی لیده چی مهربانه خوردی له ډیری خوښی نه ګډېدله اولاسونه یی اړول .
زمابریالی بچیه . ستابری زما زړه یې له خوښی نه ډکه کړه.
ستا د ځوانمیرګ پلارتر مړ ینـي ورستـه لومړنـي ورځ وه چـي دخوښی مزه وڅکم او پر غمځپلي شوندومي خنداخرګنده کړم.
بیاهم زه اوخوردي ستابریالیتوب دزړه له کومي نه مبارك وایو.

زما نازنین بچیه . واوره چی لدی بریالیتوبه دی مغرور نه شی اوله هاندوغوښتنی نه زړه وانخلی . داسمه ده چی ستابری ډیره ځلانده وه. لاکن ستادجدیت تازه او لومړنی کاردی . که وغواړی دخپلی لومړنی بریالیتوبه دومره مست اوله ځانه بیخوده شی له نورو یا رانو نه به وروسته شی .

ددی ټولو سره ، سره باید تاته اطلاع درکړم چی ما او خوردی هر یوپرخپل وار په زړه پوری سوغات چمتوکړی دی چی پرته له شکه به دی دمنلووړ وګرځی.

ما اوخوردی او داسوغاتونه ټول په کورکی ستادراتلو په انتظاریو .

ستابریوته سترګی په لار – موردی

## داولا دلیک پلارته

تاریخ........

مهربانه پلاره که دهغه مهربانه پلارله لیدنی او دبی پایه الطاف اوپلرنی مینی نه چی دتل لپاره او هر چیرته چی یم زماپرسریی سیوری غوړولای بی برخی یم خوښ یم چی ستاسو او دمهربانی مور او خویندونه دبیلتون رنځ دخپلی زده کړی دبریالی پرمخ بیو لو په اموروکی هواروم چی دمهربانه پلار دپاملرنی په رڼاکی وکولای شوم خپلی زده کړی په ښه توګه سرته ورسوم او په خوښی سردتولوپه لیدلو بریالی شوم . خدای شاهد

دی پرته دهغه ولینعمت دخاطر له رضاکولونه بلـه اندیښنه او آرزونه لرم .

دلیك په پای کی خپل درودونه دزړه او روح قبلی ته می استوم او له خدایه غواړم چی دهغه مهربانه پلار سرپرستی اومشری دی تلپاتی دی .

داسلیك .......

## زویه

یوه موده ده چی ماته لیك نه لیکی که څه هم چی ستاله ترور جانی نه می هغه لیك چی ستادروغتیا زیری راته راکوی لیك درلود ولی زړه می غوښت ته په خپله راته لیك ولیکی . البته له تانه ګیله نه کوم داځکه چی دپلاراو زوی تر منځه ګیله کومه مانه نه لری . اما که په یاددی وی پروسږکالی چی ناروغ شوی وی ماخپل کاراو ژوند پریښود اودوه میاشتی تاسره پاتی شوم . داځه نه دی دهرپلار همدأ ندنده ده اوپرته لدی هم نه شی کیدای . ولی ښه دی چی ته هم زده کړی اوخپله مور او پلار هیرنکړی همیشه دی په خاطر کی وی چی هغوی ستالپاره څومره زیار ایستلی دی او په تیره بیامور دی چی ستالپاره شپه او ورځ نه لری . نو ستاله خوانه دا اخلاق دمنلووړنه دی چی خپل پلار او مور څومیاشتی په انتظار پریږدی .

په هرحال خورمی دی تاته در واستوله . داښکلی ماموره به تامجبوره کړی چی هره او ونی خپل بوډا پلار یادکړی.

ستاپلار .......

# مورجانی

په رښتیا چې له پلارومورو لرې والي څومره ګران دی له هغې ورځې چې ستاسونه بیل شوی یم یوه شیبه تاسوهیرولاری نه شوم دتل لپاره ستاښکلې څېره مې دستر ګوتر وړاندې مجسمه ده .

دلته ډیر آرام یم . تر ورجانې مې له ماسره په ډیره مهربانی پایي اوهره ورځ له هلکانوسره دسیندغاړې ته ځو . اما څنګه چې ته نه یې پرماښه نه تیریږي . یادیږمې چې تاویلې اوبه خطرلرې په تیره چې پرمادې تاکید کړیده چې دسینداوبو ته ولاړنه شوم .

همدانن یو دوه ویشت کلن ځوان په اوبو کې ډوب شو! که پوهیږې چې څه محشرو . پلار او مورې ئې چې پرته له هغه نه یل زوی نه درلودل داسې ژړیدل چې خلك یې له لېدلو غمجن کړې وو . زه اوس سوچ کوم چې مور څه رنځېدلې موجود دی . څومره سخته ده چې پلار او مورخپل دځیګرټوټه دخاورې اسیروینی .

بې ځایه دې پدې خبرو غمجنوم اماپر تاسوګندچې تراوسه پورې دسینداوبوته تللی نه یم .

ستازارې مې هیرې ندی او پوهیږم که چېرې واورې لمبلوته تللای یم ځوریږې پرون مې اکاجان دخپل اوښې سره زموږ کره وو . له تاسونه مویادونه کول اوجوته شوه راتلونکې اوونی کې له هغوی سره درشم . نور نوستااودپلار له لرې والي نه ستړې شویم اوتردې ډیر له تاسونه لرې پاتې کیدای نه شوم .

ستااولاد .

## دیوی نجلی لیک خپلی مورته

مینه ناکی موری ستاله مینی ډک لیک می بوی کړه .ښکل کړه اوپرسترګومی کیښوده . داد زړه له تله وایم چی دخپلی نازنینی مورله محبت اولطف نه یوه نړی مننه . هیله ده پلارمی ډیر ژر روغ رمټ شی اوزه هم دری میاشتی وروسته دتحصیلی کال پای ته رسولو سره اوپه ازموینی کی تربری وروسته چوپړ ته چمتواو دپلار اومور لاس ښکل کړم .
هیله کوم چی زماله خوا کوچنی خورمی ښکل کړی او وروستنی عکس راته ولیږی . کاکا او دکاکاښځی می تاسوته سلام رسوی .ځومره خوښیږم چی ژر ژر ستاسودلیکو نو زیارت کوم .

ستاسواولاد ....

## دلیک ځنډ رسېدلو له امله زوی ته دمورلیک

زما دستر ګوتوره :
ستادلېدلو لړی والی ماځوروی . دلیک نه رسېدل اوستا دوجودله روغ والی نه بی خبری زما ځارنه لازیاتوی او ډیره نارامه وم ترځومی پردغی .... نېته ستا لیک تر لاسه کړه اوله روغتیادی دخدای شکرمی وایست ولی دخپلوحالاتوډی هیڅ رپوټ نه و لیکلی . ته خوپوهیږی چی موردی شپه او ورځ له

سوچ او خیاله خلاصون نه لري . دابنه ده چې هره اووني دخپل حال له ځرنګوالي ماخبره کړي او ډیره او ږده دخپلوکارونو خوړو ښنباك او ژوندانه په باره کې ولیکي .... جان او دهغه (هغی ) اروندکسانوته زما سلام ورسوه اوکه کوم کارولري له لیکلوډډه مه کوه .

ستړګې په لارموردی.....

## څواب

ګراني موري : ستاقهرناکه لیك چې دمورنی میني نه ډك وپه رسیدلویی خجالت کړم .
مورجاني: ته مستحقه یې ولې له یوي خواتصدیقوی چې دهیواد پلازمیني (پایتخت ) ته دلومړي ځل لپاره دیوه ښوونکي راتګ هغه هم پرته له لاربنود اودهستوګنې لپاره مناسب ځای تاکنی اوله بل پلوه زده کوونکي ته ستونزي او دزده کړي نوري چاري څومره بوختنیالري .
که چیري څواووني ستادنازنین زړه پریشاني سبب شوي یم . علت داوچې دتلوسره سم پریو ی ستونزي واوښتم او هغه داوه چې زما د ( ) جان یا (جاني) کور له پخواني ځایه لیرډیدلای او پخپله هم دیوبهرني مسافرت لپاره ( ) تللی وو او دهغوی مغازه هم څوورځې تړلې وه اوکومې نښې چې درلودې پدې ستر اوله ګنې ګوڼې نه ډك ښار کې مې ونه شوکړي دهغوی دنوي

کور پته وموم .تردوه ورځی تمېدو وروسته په میلمستون کی دبناغلی ( ) دیو دوست کور ته ولاړم . په هغه ځای کی له ما سره یی په ډیره مینه سلوك وکړ او په ربنتنی توګه یی منتباریم . ولی ما احساسوه چی دهغوی ذکور دکوچینوالی له امله اوکومه کوټه یی چی زما په واك پریښی وه. ځان یی په کړ او اخته کړی وو او څو ورځی هم دنوم لیکلولپاره می مدرسی ته مراجعه وکړه ترڅوچی ګران ( ) بیرته ستون شو او دهغوی کور ته ولاړم او دلیك لیکلولپاره می فرصت مناسب ولید . د ( ) او منسو بینوحال احوال ډیر ښه دی اولادونه یی ټول ښوونځی ته ځی په کور کی هم ژبی او هم فکری لرم او په خدای چی ورځی شپی ښی تیریږی هیله ده چی تاسی زما له خوا داده اوسی .

یوازنی غوښتنه می داده چی پنځه توکه کتابونه می چی دمیزپه حبیب کی دی په یو پارسل کی راته راولیږی چی راته ډیر ضروری دی او دپیریدلو توان یی نشته . په پای کی مومځ له لری نه ښکلوم هیله من یم تل روغ او خوښه اوسی .

ستاسوزوی ....

# داولادلیک مورته

زما گرانی اومهربانی موری . کومه گړی چی می غوښته له مبارك حضوره بیل شوم ددوواحساسوترسختی اغیزی لاندی راغلی وم . لومړی داچی دقدر وړ مورمی پریدم او دیوی اوږ دی مودی لپاره ستا دلید لو له برکته به محرومیږم او بل مسافرت ماته دزده کړی لپاره خوند ورو .
په تیره بیا دویم احساس لدی پلوه غلبه درلو د چی دپوهي زده کړی په لاری هر څومره چی زیار وباسم ستا سو دیری قدرمنی مور دزړه آرمان لاترسره کیږی که څه هم یو له بله لری اوسو .
مهربانه تروږمی زما دراتګ سره له خوښی نه وژړېده څو ځلی یی ښکل کړم . له مانه یی وغوښتل چی دهغوی دمینه ناکو سلامونو رسول ستا سوحضور ته وسیله شوم . ستاسولاس له سره ښکلوم .

ستاسواولاد ......

# دپلار لیک او لارته

دزړه سره ستا لیکونه هرکله لنډ اوبې مطلبه دی بایدووایم چې زما نه خوښېږي .
مکاتبه دهغوکسانو ترمینځه چې یو له بله سره لرې دی ښایې دشفاهي ګړېږحکم ولري . په تیره بیا چې زما وستادنیااوس داولاد توب او پلار توب له دنیانه او ښتي دمحبت اومیني دنیاده . نو هیڅ مایل نه یم دی ته چې ستالیکونه داشاني رسمي وي .
هر کله چې دلیکلولپاره ماته قلم راپورته کوې داسې سوچ وکړه چې زما سره ناست یې (ناسته ) یې اویوله بله سره خبرې کوو. اوس چې زما لیك تاته رسیږي کاغذوقلم راپورته کړه اودخپلوزده کړو په باره کې ولیکه . له خپلوګرځید واو چکرنه ماخبرکړه چې دلاري په ترڅ کې دطبیعي مناظرونه دی حاصل کړي دي تشریح کړه.له هغوکتابونو نه چې درسختیوپه وخت کې خپل افکار پرې مشغولوې اوله څه نه بحث کوي ولیکه .

دبریالیتوب غوښتونکې دی . پلاردی

## پلار او مور ته یو لیک او خپل درانګ خبرهغوی ته رسوول

زما محترمی مور اومحترم پلاره : دسلام په ورپاندی کولوسره عرض کیږی د (           ) په ورځ روغ رمټ (           ) ورسیدم
دامی دنده ګنم چی دخپل روغتیاخبرخپل ګران پلار او مورته ورسوم . زما داکاجانه او اړوند کسانو حال ښه دی اوسلام کوی .
تر اوسه می خپله کوټه لاسمباله کړی نده انشاً الله سباته دنوم ثبتولو لپاره د (           ) ښوونځی ته چی کور ته نژدی ده ورځم . هیله ده په لوست کی دپخوا پشانی کوشش وکړم . دلیك په پای کی تاسو په خدای سپارم اوهیله کوم زما له خوانه خوراو وروړمی له سترګو ښکل کړی اوما دخیرپه دعاکی هیر نکړی.

ستاسواولاد . . . .

# خواب

انه دسترگوتوره ستادتللونه موشېې شمېرلی چی دروغ رمټ رسیدوخبردی (          ) ګله به موږ ته له رسېږی . ډیر خوښ شو چی ژردی لیک ولیکه . دادی دخدای نه رضایو چی ستاسفرپه ښه توګه ترسره شواوهیلـ من یو چی هیڅکله دتحصیل په لارکی غافل نه شی اوهر کله دپلار ومور در ضایت او خپلی لوړ تیا په لار کی زیاروباسی .
اکا او تولو اړوندوکسانو ته می سلام ورسوه اوخپل حال احوال ژرژر ولیکه .
ورور او خور دی ښه اوتاته دعاکوی . ستا له دوستانونه یو د
(          ) په نوم تاته یوکتاب له ډیر تاکیدسره ډالی کړی چی هغه هم ډیر ژربه درته پارسل شی .
هیله ده چی ستادوست دغه ډالی ستادمنلووړوګرځی وکولي شی دی ګټورکتاب نه دخپل راتلونکی لپاره دښه سرمشق په توګه ګټه واخلی . نوردی وخت نه نیسم اوان شاألله چی بریالی به یی .

دخدای پامان – لاسلیك .

# دمورلیک لور ته یی

زما ګرانی اومحبوبی آنینی :
له مهربانه خدایه غوارم چی دهغی نازولی لور ګران اونازنین وجود په بشپړه سلامتی اوخوښی کی وی او هیڅ ډول ناروغی ونه لری . وروسته تریوی میاشتی انتظار او له تانه دهرډول خبر نشتوالی نن سبایی ستاښکلی لاسلیك راته راکړل . . .
دنورو میند وپشانی می نه چیغه وکړه اونه می غږ وایست اونه داسی کوم حالت می ورته وښودله چی پوه شی څومره خوښه شوی یم . څنګه چی می همیشه همداسی حال واوحتی الامکان می زیار ایستلی چی خوك می دامین زړه په حال پوه نه شی . ولی همداچی می ولېده له وره ووتله بیواکه می اوښکه دکاغذپرمخ تویه شوه اودخپلی سترګی روښنایی می احساس کړه . هغه وخت پوه شوم چی دخوښی اوښکه یعنی څه . هره دانه اوښکه می لېدله چی زړه ته می خواك بخښی او روح ته می تازه ګی ورکوی .
داښکلی لاسلیك زماد ښکلی ائینه ده .چی څوشپی یی پری نه ښودم یوه شېبه ارامه ویده شوم اوڅه عجیب او غریب فکرونه یی راپه برخه کړه.

تولی اندیښنی ستادلیك په لیدلوسره پای ته ورسیدی اواوس چی داکاغذلیکم په تول روح کی می فوق العاده خوښی پیداشوه اویوه ګړی کیږی چی ستادلیك له لوستلونه خلاصه شوی یم .اوڅوورځنی اندیښنی می په وارسره هیری کړی دی .
ای ستاشیبی خوښی چی زما شیبی دی کړی خوښی .
څومره جذابه اوخوږه دی لیکلی وه . کومه ښکلی تابلوچی دی دلیك په لوستلوزماترسترګو ا نځوره شوه هیڅ کوم غښتلی لاس هغه نه شی انځورولای . هغه آئینه چی می په اوونیو ، اوونیو زړه غوښت دهغه ښکلی څېره ووینم اوهره ورځی دناچاری له مخی تلم اودعکسونو تماشی ته یی کیناستیدم راغله اوزما دسترګوتر وړاندی خپله څوکی کیښوده اوماته یی تعریف کړه ښوونځی ته تګ یی ، ترازماینی تیرول یی او . او، او تول .... سپوږمی مخ ته یی ماکتله .
داهماغه آینه چی دنیاته دراتګ لپاره یی متبرکه ځایونو ته ولاړمه نذرونه می ومنل څوچی ماته یوه آئینه شی . اوڅومره هیله منده ومه چی هرڅومره می چی ژرعمرتیرشی او ژرپیغله شی.
هغه ده دهغی او دپوهی ستروالی وینم ....
څه اوږدی ورځی می تیرولی اوخپل دغه فکرته نه رسیدم .
یادیږی می چی یوه ورځ یی ژبه خبرو ته پرانیته اوماته یی خبرراکړل .
نن آئینی خواږه وغوښتله او خپل وویلی (.:... غوارم او اوس هغی برخی ته رسیدلای یمه چی هغه دپردی ترشاخپله لوبیږی

اوزه هغه وینم . کاشکی هرڅومره ډیرژر دسینماهغی پردی ته چی هغه راځی او خپل ټول کارونه ښایی ورسپړم . دهغی ښکلی مخ ووینم او ښکلی اوپه زړه پوری خبری یی واورم ....

.... خلاصه شوه نن دا ( ) ۱۸ مه ده کله به ډیرژر ( ) او ( ) او ( ) پای ته ورسیږی اوزما انتظار هم د ( ) او ( ) میاشتوستااو د(کاوه ) راتلوته که ژوندی ومه پیل شی . خدای دی وکړی په سختوآزموینوکی بریالی شی او روغتیایی وضعه دی ښه وی چی زمایوازنی آرزوده اوس ...

هره ورځی چی له خوبه پاڅیږم تا او(کاوه ) ته دعاکوم . بیاپخپل ورځنی ژوندپیل کوم . کله چی پرمخ یوه سړه څپه دباد احساسوم بی اختیاره ستااو دپاریس یخنیوپه سوچ کی شوم . ټول وجود می بی اختیاره له ی فکره لړزیږی .

زه په یوی نری شال کی ویدیږم او په ورځوورځوکی دډیری تودوخی له امله په یونری کمیس کی گرځم په ربښتیاچی دهغه ځای مقابله نقطه ده . دهمدی تودی هواسره خبری او رازونه لرم .

هرکله هغی (هوا) ته وایم ولاړه شه زما دآیئنی کوټی ته ، مه پریږده چی دهغی سور او ښکلی مخ دسړښت له زیاتوالی نه تکه شنه شی ماته مه راځه ، زه نه غواړم ته زما ترڅنگه راشی اوهغه هر سبایی له وخته ښوونځی ته ځی او ته به هلته نه یی .

زما ورځنی ژوندستااو د (کاوه) په سوچ کی تیریږی او (انو شی) باندی سره لدی چی ډیره می خوښیږی لږسوچ کوم داځکه چی

هغه یوخوك لری چی وي څاری اوماخپلی دندی دهغی‌په اړوند ترسره کړیدی .
زړه می هغی اولوړپسی یی ډیر تنګ شویدی ولی کله چی پاملرنه کوم چی ژوندیی ښه اوسوکاله ده په بشپړه آرامی راپه برخه شی ولی‌تااو(کاوه) ته یوبل حالت لرم چی یوه شپه هم نه شوم کولای آرامه پاتی شوم . او همیشه حسوم ، وینم او زړه تاغواړی . سترګی تالټوی . دری کیلوګرامه ( ) تاته درولېږه چی ویی خوری ، زړه نه غواړی هغه وخورم
ته اوخدای هر څه چی دی خوښېږی ولیکه ترڅودرویی لیږم . (کاوه) هم ( ) او ( ) غوښتی و . اماماته ډیره ګرانه ده چی کوم څه ولیږم . که دی وکړای شوه ورته ورکړه له کومه وخته چی دلته راغلی یم له هغه نه می دوه لیکونه ترلاسه کړی او ډیره ورنه خوښه یم .
ولی له تانه تراوسه پوری هیڅ خبره نه وم . پرون چی می لیونتوب پاریدلی وپلار ته می دی وویلی. تلګراف وکړی . وییویل تلګراف څه ګټه لری که ناروغه هم وی وایی جوړه یم . نوپدی خبره بیچاره شومه . دخدای زرځله شکرچی‌نن خدای دخپل رحمت ور زما پرمخ پرانیت . زموږ ژوند په یواز یتوب او یوحالت تیریږی . د (انو شی ) (کاوه ) (آئینه ) اودفرهاد) غالمغال او د دسترخوان په سردهغوی ډول ډول خبری اتری پریوه عجیبه چوپتیااوښتی .

زه یم اوپلار دی (فرهاد) هم ځینئ شپې زموږ سره وی اوپاتی نوری ددی لپاره چې خپلولوستونوته چمتوشی ځانته ډوډی خوری .
کله کله له ډیری بیچاره ګی نه چې په یوازیتوب عادت نه یم (شمسی) چی کابودری میاشتی کیږی راغلی ده اوخپل زوی یی د(      ) ښوونځی کی اچولی له یواز یتوبه دځان ژغورلولپاره تری ځارنه کوم .
فکراوحواس می له تاسوسره او ظاهری صورت می دلته دی . نوردی ښکلی مخ ښکلوم .

له تاقربان — موردی .

•

## خواب

ګرانی ، نازنینی اومهربانی موری :
تاسوپسی ډیره خپه شوی یمه چی کچه یی نه شوم لګولای . باور وکړه له هغی ورځی نه چی تللی یی په هرګام . شپه او ځای کی ستاسو دنری او ژرالو تونکی سیوری پسی چی یوی شبحی ته ورته ده دهغی سپکوالی اوښکلا پسی چی تل په یوځای کی راغلی او یوه هوامو هغی ځای ته ورکوله ګرځم ...
له یوی کوتی نه بلی ته لدی کلمی نه و بلی کلمی پسی منډی وهم چی تاسو اوستاسو تکی اوستاسوخبر ولری ووایم یا واورم .... نه پوهیږم ولی تر دی حده حساس شوی یم

نه پوهیږم ولی دومره ګرځم لدی ځایه وبل ځای ته الوزم . مخ ته او شاته ، پورته او لاندی تول راګرځم چی کوم څه ومومم او په خدای چی نه پوهیږم هغه څه دی ؟ دژوند پدی موده کی څه ستاسو په وړاندی ، څه دخدای په وړاندی . څه دوجدان په وړاندی دهرڅه پسی ګرځیدم ، دکتاب ښه والی می لټوه دپلاراومور ښېګنی می سنجول دطبعیت ښکلاو دشعرجوړښت می لوستله څه می ولیده ؟ څه می وکړه ؟ .... څه وشوه ؟ .... داشوه چی نن آئینه شومه.

همداسی نده زماګرانی موری ؟ ...

کله می ځانته ژړلی ترځویږڅه شومه ؟ کله می ستازړه وژړوله اوشرمنده شومه کله پخپلوکړو خوښه او کله پښیمانه شومه . کله دخپلو عملونو ښوونکی شومه اوپرځان وویاړیدم تول می وسنجوله ، اړتوب ، ستروالی ، وړوالی ښه واالی، خوښی بدوالی ، لوکس والی . تنګسه تول صفتونه . دهغونه له تولونه بهرووتم اوله باندی نه می هغوته وکتل . په تولوکی پاتی شوم . څه می ولیده ؟ دهغوی تولو عکس العمل څه وو ؟ دیوی مورلور ستالو په ګرانښت ښکلی موری ....

ستاسونه قربان لوردی

# مورته پولیک

زما ګرانی موری :

ډیره موده شوه لـه تاسـونه لـری اوپـه غـم اوکړاوکـی پـایم اوس پوهیږم چی مورڅه مهربانه موجود اوڅه سترنعمت دی .

کله چی ستاپه غېږکی وم دهغو ورځوپه قدرنـه پوهیدم اوس چی ډیروتښ له تانه لری شوی یم پوهیږم له څه لوړ ببی نعمت محروم شوی یم . موردکوچنیانو دخاطرباعث دی . کلـه چی دانسـان زړه ته غم او تنګی لاره مومی یوازی دمورغیږده چی کولای شیغم هیرکړی .

هرکله چی له واټه تیریږم همزولی وینم چی دخپلو لاس؟یی نیولـی چکـر وهی دهغوورځوپـه یـادچی زه هـم دمورتـر څنګه لوبیـږم حسرت راشی ! لـه نیکرغی نه زمـا دبېلتـون او محرومیت دوره پای ته رسیدلی او سږکال په آزموینوکی بریالی شوی یم اوهیله ده ددو وآزموینوپه ترڅ کی ستاسوخوا ته درشم .

زما له خوانه به می سلام ګرانی خور او محترمو ورونوته ورسـوی او زماله خوانه دهغوی ښکلی مخونه ښکل کړی .

هغه چی تاهیڅکه هېرولای نه شی .

ستااولاد ....

# له مورنه زوی ته لیک

ګرانه ، لیک دی ورسیداو دهغه خوږ زړګی بچی پیام می پرزړه کیناست . زما وستاپیوند له هغوپیوندونونه دی چی دبیلتون اولری والی کلونه هم نه شی کولای انځوریی له خاطره لری کړی او دمور داحساساتو او عروقوذرات داولادپه مینی کی لکه دهمغی مرغلری پشانی چی هیڅ یوماهر صنتګرنه شی کولای سره بیل یی کړی مور او اولادمینی له بنسته دی او هغه څه چی له مینی زیږیدلی وی ډیری سختی سیلی هم هغه له مینځه وړلای نه شی .

زما بچیه . ته می وجود . آرزو ، او دراتلونکی امید او دتوروشپواودردناکوګړیوتسلی راکونکی یی . ته چی هرڅه یی پرته له مانه یی او زه غیرله تانه یم ، ستاعکس زما نمونه او زما احساسات ستادوجود ځلاده .

ستامور....

# دپلار له مینی ډک لیک اولادته

گرانه بچیه ! ته مې دسترګونور دزړه قوت دوجود نیالګی میوه یې ، بې نوره سترګه ، بې قوته زړه بې میوې ونه هیڅ یوکوم قدر وارزښت نه لري . بناپردې نه شم کولای تادخپل هستی بازار رونق ونه ګڼم . ترهغه چې له تاسره وم تصورمې کاوه چې انسان پرته له ځانه بل څه نه خوښوي ولې اوس وینم چې له ځان خوښونې نه لوړ داولاد سره دوستی ده چې دځوانی په پیل مې کې ځان خواروه تر څوته آرامه اوسې چې څلویښت کلنې پراوته نژدې شوم اوله ناکامه مې دځوانی له نرۍ سره خدای پاماني ده ددې سره سره چې له تانه لرې یم همیشه مې ته په یادیې.

کله چې نوی په خبرو راغلې وی ماتې او ګوډې کلمې دې پرژبه راوړې غوښته مې ځان مې ستاخوږو خبرو قربانه کړم ، کله چې به موسکۍ شوی دخوښې جنت وربه دې زما پرمخ پرانیت اوکله چې به دې ژړل ستاد ژړلو آهنګ به لکه دپولادوغشی زما په زړه کې ننووت .

ستامهرمې سترګی په زرګونه تکی به له هر کتوسره راته ویلی چې دنړۍ ډیر ستروینااوال دهغې له ډیرې لرې برخې ویلونه عاجزدي او پرته له هغه چانه چې پلار شوی وی نه شي کولای دهغې په لطف او خوږ والی پوه شي .

له هغه وخته چې دشفق (سپیده داغ ) ارغوانی بخملی پردې څیرې تر هغه شېبې چې سپیده داغ دشپې آبی کمیس څیروه

اوخپله نورانی څېره یې نړیوالوته ښودله ستاد زاتګوترپښی لاندی ناست وم او ستاسعادت او سوکالی می دعالم له خدایه غوښت .
که خدای مکړه څو ورځی ناروغبدی خوب وخواړه مـی پـرځان حرام کړی واولکه دپتنګ ستاد وجود له شمعی راتـاویدم تـر سهاره پوری ستاد ناروغی له غمه نه ویدیدم .
لږڅه چی غټ شوی اوسردی پورته که په زړه منی دی مینه داسی ځای ونیوه چی هرڅه په دنیاکی وتاته می غوښت ماپخپله شړلی جامی آغوستی ځوتاته ډیری ظریفی جامی وپېرم دخپل ضروری لګښت مخنیوی می کاوه ځوستادلوبواسباب چمتوکړم په هرحال واحوال فکرذکرمی‌ته وی .
هر سهار چی خپل کوچنی بکس دی اخیستـه اولکـه دشـاتومچی چـی لـه خپـل کندونـه دبـڼ اوبوسـتـان پـه لـوری ځی لـه خپلوهمزولوسره ښوونځی ته تلی دلاری په څنډی‌کی کیناستم او دعـامی کولـه چی خدای دی لـه ورانوسترګو وستاته اوبېرتـه روغ رمټ دموروپلار خواته راستون شی .
هرچاچی بـه لـه مانـه کومـه غوښتنـه درلـوده اوسـتـاپـه سـریی سوګندراکوه بی اختیاره می دهغه غوښتنه منله اوضرورت می ورته حلاوه داځکه چی په نړی کی می ترهرڅه لـه تاسره مینه وه اوهر څه چی می په واك کی وستالپاره می غوښت .
اوس هم چی له تانـه لـری شوی یم په دی هیلـه مـی خوب تـه ډډه لګیږی چی تابه په خوب کی ووینم اوسهار په دی امیدسرله خوبه

پورته کوم چی ښنایی په بېړه مخ په کور په منډوشوم تاپه غیږکی ونیسم اوښکل کړم .

دا زما هغه کیسه وه چی شپه او ورځ په داسی حال کی چی له خپلی کورنی نه لری پروت یم ستاپه یادیم .

آیاته هم کله مایادوی یانه ؟ همدوره پوهیږم چی اوس ته دزده کړی په پړاوکی‌یی اوپرته له بریالیتوبه په لوستونوکی اولوړو پوهنوته درسیدلولپاره بله آرزونه لری . ولی کله چی لدی پړاوه خلاص شوی اوپلار شوی له هغواحساساتونه چی دپلرونو په زړو کی په غور ځنګ دی خبربه شی .

سره له دومره انتظاره چی له تانه لرم داده چی په یوواردی پلارهیرنکړی او کله ناکله یی یادوه .

ګومان کوم هغه دندی چی می ستاپه وړاندی ترسره کړی ستره غوښتنه اومحاله تقاضابه می نه وی کړی

ستاپلار......



# د خور لیک ورورته

گرانه وروره ، دریم لیک می درلیږم حال داچی دلومړی لیک ځواب می لا زیارت کړی ندی .
نه پوهیږم داسرښت اوبی مینی توب څرنگه تعبیرکړم . هیله من یم چی پرته له بوختیانه ددی بی مینی توب بل کوم سبب نه وی .
امکان لری تاسوته دلیك ژرياځندرسیدل کومه اغیز ونه لری اما ستاسو دلیك نه رسیدل زموږ نځوری او زړی مور باندی چی شپه وورځ ستاسوپه سوچ کی ده نا وړه اغهزه لری .
کابویوه اوونی کېږی چی له خوړو او خوبه پاتیده نه سمه خواړه خوری اونه آرامه خوب لری .
سره ددی چی دری لیکونه می تاسوته لیکلی بیاهم هره ورځ تاکید کوی چی بل لیك درولیږم او ستاد دوستانو پوښتنی ته ځی اوله هغونه ستادحالت پوښتنه کوی . آیا سوچ نه کوی چی داتول دروحی نارامیوله امله ده چی خدای مکړه ممکن ناوړه پېښی رامینځته کړی؟
له تانه غوارم چی لږترلږه په اوونی کی یولیك را ولېږی . که څه هم چی لیك موهرڅومره لنډوی موږ ته لوی او گټور دی .
زموږ مور په دی حساس وخت کی ترهرڅه ډیر زموږزړه سوی ته اړه ده اوتاسی نه شی کولای چی مورنی عواطف او احساسات په ښه توگه مجسم کړی که چیری دلته زماپشانی دهغی له کړاوه دك ژوندانه ناظر وای په هیڅ ډول به دهغی دسپیڅلواحساساتوپه وړاندی بی توپیره نه پاتی کیدی .

ستاخور.....

# ځواب

ګرانی خوری لیك وی ورسیدبی کچه خواشینی شوم . ځنګه کیدای شی چی یو اولاد دمورنی عواطفواو احساساتو په وړاندی بی پرواشی هغه هم لکه ما پشانی او لاداوهغه مورچی خپل عمر یی زموږ دسوکالی لپاره تباه کړی ده . ماهر ځلی چی ستاسولیك راته رسیدلی دیواو دووګړیو په واټن کی ځواب لیکلی دی . اما دا چی ولی دالیکونه تاسوته ندی رسیدلی او علت یی څه و. پری خبرنه یم او دا موضوع زما دنارا متیاسبب شویده .

شاید داچی ماپخپله لیك شخصًاپست کی ندی اچولی ددی باعث شوی وی چی ګرانی خور او مهربانه مور چی له خپلی سترګی نه می خوښیږی دومره نارامه شویدی او ابدا می ستاسو دلیکو نو دځواب په ورکولوکی سستی ندی کړی . دهغی له وضعی نه خواشینی شوم هیله ده هغی ته تسلی ورکړه او داچی زما حال له هرپلوه ښه ده او په تیره ددی لپاره چی ډاډه شوم چی لږ ترلږه دالیك ستاسولاس ته درسیدلی ومی پتیل چی هغه راجسترکړم .

له تانه چی یوازنی ګرانه خور می یی غوښتنه کوم چی له هروخته ډیره دهغی څارنه وکړی لکه ځنګه چی تاپخپله لیکلی هغه له پخوانه زیاته ستاسوپالنی ته اړتیالری زه له خپل دی بی پروایی نه معذرت غواړم اولدی وروسته زیاربا‌سم چی ډیرلیك ولیکم

اوهمدا شان کوښښ کوم چی پخپله هغه درولیږم اوته پخپله پوهیږی چی ددی سفرمنل می یوازی ستاسولپاره دمرستی په منظور و. مادالری توب اوبیلتون وپېرو دڅوتاسی سوکاله کړم. که چیری پرعایدموګوزاره کېدله هیڅکله به می په دی کارلاس نه پوری کاوه. آیازه پرته له تاسونه بل داسی څوك لرم ؟

آیاتردی نېتی پوری یوه ذره هم داولادتوب او ورورۍ په دندوکی پاتی راغلی یم ؟

ته چی له هر چانه ډیره ښه په دی ټولوپوهېږی نوځرنګه حاضریږی چی پرخپل ورورتومت و لګوی.

له تایوازی دسترګوتوره څوری غوښتنه کوم چی دخپلی ذاتی پوهی په مرسته چی لری داسی کاروکړی چی زموږ مور نارامه نه شی. ته اوس هم د هغی لور او هم زوی یی زما پرځای ښایی ته وځویریږی.

ستامخ او دمور لاس ښکلوم اوله خدایه غواړم چی تاسی راته وساتی.

دلیدلوپه امید.

ورور دی ......

# ګران ورور

لــه مینــی ډك لیــك دی راورســیدهغه مــی ښکــل کــړه او پرسترګومی کیښوده . رښتیاچی دغزیزانو لیك پخپله عزیز پشانی ګران اوارز ښتناك دی . وخت لنډوی او واتن له منځه وړی .

سړی خپل ورور ، دوست،پلاراومورر وینی چی ورته مخامخ ولاړه اوپه خبرولګیاده .

پرون چی می دی لیك لوستله حس می کوله چی په هغه ښکلی ځیره له ماسره خبری کوی په پخوانی لیك کی دی زمادزده کړی دپرمختګ دوضعی په اړوند پوښتنه کړی وه پدی لیك کی کولای شوم تاته زیری درکړم چی په ښه توګه منله کېږم هماغسی چی دی له مانه غوښتی و دبری په لارکی می له هیڅ ډول زیاره ډډه نده کړی او امید واره یم راتلونکی کال کی هم وکولای شوم ستامهربانی ورور پــه مرستـه پـه آز موینو کی بریالی شومه اوګران پلار او مـور خوښه کړم او دهغوی آرزو ترسره کړم چی هرځومره ژر دی په لیدلو خوشحاله شوم .

خوردی ...

## مشر ورور ته یولیک او دیوتوک کتاب غوښتنه

قدرمن وروره ....

تاریخ ....

دسلام په وړاندی کولو سره کابویوه میاشت کیږی ستاسونه می کوم لیك ترلاسه کړی ندی . هیله ده پرته دکارله درنښته بل څه مانع منیځ کی نه وی اوتل دعافیت او روغتیاسره وپایی که زماله حاله پوښتنی روغ رمټ اوستاسودلیدلولیوال یم او په خدای چی دزده کړی په کارکی می هم لټی نده کړی اوپه ازموینی کی بریالی شوی‌یم .
اوس په دوبنی رسخیتوکی دهغوکتابو نوپه لټه کی یم چی تعریف یي ماله خپل محترم استاذه اورېدلی غواړم ویی لولم .... قلم تــه .... ده . څنــګه چــی ددی ځای پــه کتــاب پلورنځیوکی نشته هیله ده ددی کتاب نه یوټوك راته دپست په واسطه راولیږی.
له مهربانی نه مومننه

ورورد‌ی ....

## جواب

ګران وروره . لـه میني ډك لیك دی چې ډیـر ښکلـی اوښه دی لیکلی وراورسید ډیر خوښ شـوم چې پـه آزموینوکـی بریـالی شوی یی او لیکنه دی په ښه توګه زده کړی اولـه بـل پلوه خوښ یم پردی چې درسختی ورځی دی دښوکتابونوپه لوستلوتیر وی پدی وروستی میاشت کې زما دنه لیکلوعلت دیرلوستل ډیـر کاراووروستی از موینی لـه امله و . آخرتـه خپلـه پوهیـږی چـی دشپی له مخی په یوتولګی یوشمېرته لیـك لوست ورزده کوم . پـه خدای چې روغ رمټ اوستاسوټولو اوخپلوانو پـه دعـایم او یوټوك کتاب . . . او یو ټوك هم . . . پـه یو پـاکټ کـی دپوستی پـه وسیله مـی درولیږه . زمـا سلام قدرمـن پلار مهربانی مـور اوګرانـی خور تـه ورسوه کـه کـوم څه کـار دی و، ولیکـه زه هـم امیدواریم تردی وروسته ژرلیك ولیکم اوتل ستاسو روغتیـا لـه څښتن تعالی نه غواړم .

ســـتاورور . . . .

# وروړته لیک

ګران وروره ، له تانه ګیله نه کوم . ورور له وروره ګیله نه کوی او زما وستاتر مینځه نه ښایی چی کومه ګیله اوشکایت وی. هغه بله ورځی چی کورته دی راغلم ته په کور کی وی ماته یی وویل کورکی نه یی آن ستاغړمی اوریده او خپل نوکرته دی ویلی.ووایه چی څښتن کورکی نشته . تر څوچی کورته تلم ددی کار په علت می ډیر سوچ وکړچی پری پوه شوم ، هر څومره چی می پرخپلومغزوفشار راوست ددی کار په واقعی علت پوه نه شوم .

په نارامی او ستړی حالت کور ته ورسیدم . په تصادفی توګه می سترګه په هغه سوغات ولګیده چی هغه دی ماته دوروستی کلیزی مبارکی خوښی په محفل کی رالیږلای ولکه چی هغه سوغات راسره خبری کولی که چیری ماته ډیر وګوری دورور سرخوږی په علت به د پوه شی .تصادفاً رایا دشو کله چی داکور دی وپیرود زه مساپروم او تاحق درلور چی دکور مبارکی ته درغلی وی اوسوغات می هم درته اخیستی وای اوڅومیاشتی وروسته چی له مسافرته راستون شوم ته دی له کډي سره په چکر وتلی وی او قهراً دامبارکی له مینځه ولاړه . په یاد می شوچی تاداسوغات ددی لپاره لیږلی و چی په مقابل

کی تاته یوځه در ولېږم ځنګه چې مې خپله دنده ترسره نکړه له ماسره په جنګ شوی .
ښایی تاته حق درکړم خونه ښایی چې وروره ورور په دی شیانو قهرشی .
اماته که هرڅه یې ته مې خوښیږی . ته مې دسوغات لپاره نه خوښېږی نه پدی چتیاتو باندی پرخپل ورورباندی قهریږم .
روغتیااو سرلوړی دی غواړم ..

ورور دی ....

## ورور جانه

له مینی ډك سلام مې لـه لری ومنه هیله ده روغ واوسی . ډیره خواشینی یم چې مې ونه شوکړی ژرترژره درته لیك ولیکم . لومړی داچې مې آزموینه درلوده او دایوه دوه میاشتی مې وخت نه درلود لیك ولیکم. بله داچې مورهره اوونی تاسوته لیك لیکله اوستامشرورورله حاله خبره وه.
که زما وپوښتی په بشپړه توګه روغه رمته یم . آزموینی تیری شوی دخدای شکرومنله شوم اوس نوکومه اندیښنه نه لرم اوله دوارو ښکلی اننګودی ښکلوم .

له تانه قربان ... خورډی

# گراني خوري

لیك دی ورسیدله بریالیتوب دی ډیرخوښ شوم . راضی نه وم چی لوستونه دی پرېدی ماته لیك ولیکی . اوس چی منله شوی یی اووخت لری سترگی په لاریم چی هر ه اوونی‌دی له حاله خبرشوم . زه یوښکلی آلبوم درته جایزه لېږم .
دمور وپلار له نمانځنی یوه شېبه هم غافله نه شی هر څومره چی هغوی له تاراضي وی زه هم تانه رضایت لرم.
کله ناکله راته لیك ولیکه ، تر څوپوه شوم ددوبی په رسختیوکی خپل وخت څنگه تیروی .
له دواړو اننگودی ښکلوم .

ورورردی ....

# ورور ته لیك

گرانه وروره .... هیله ده چی روغ رمټ اوسی او داسی زده کړه وکړی چی دښوونځی ښاغلی کارکونکی له تانه راضی وی او اخلاق اوکړه دی دهغوی خوښ شی . داځکه چی دزده کړی ترڅنگه اخلاق سرې نوروته ددرناوی وړگرځوی . دناولوکړونه دساتنی لپاره له ناولو کسانونه ځان وساته داځکه چی دهغوی ناولی اخلاق دسړی په وجودکی اغېزه کوی . همداشان درواغجن سړی درواغ ویلوته اړباسی اوهم دلټ سړی سره ناسته پاسته سړی ځان خواته راکاږی. لکه چی شاعروایی : پسرنوح بابدان بنشست .

خاندان نبوتش گم شد .

وروردی ......

## مشرورور ته لیک

گران وروره ، له څښتن تعالی نه غواړم چی تل خوښ اوسو کاله اوسی .

ستاسوددغی... نیټی لیک راورسید ستاسوله دغی مینی نه چی زما په اړوندلری ډیره مننه هیله من یم وکولای شوم دهغه گران ورور دبی شائبی مینی په مقابل کی خپل دزړه له کومی چوپړترسره کړم . هماغسی چی می پخوا لیکلی په ازموینو کی دپام وړبری می ترلاسه کړه .

له هغوبوختیاواو فکری نارا متیاوسره چی یوه شیبه یي آرامه نه پریښودم دابری نه یوازی زمالپاره بلکی دهغو ټولو کسانو لپاره چی له نژدی نه زما دژوندانه شاهدان وو داریا نتیاوړ وه .

بله آزموینه په مخکی لرم که خدای وغوښت اوبری می په برخه شوه کولای شوم راتلونکی ته ډیر امیدواره شوم هغه راتلونکی ته چی له امیدونو اوناامیدیونه ډکه ده . هماغه راتلونکی چی موږ پرخپل زړه کی ځایوی اوځوك تری خبرنه لری .

په هرحال شپه وورځ کارکوم او دخوښی ځای دلته دی چی دا کارما پرتوان باندی منفی اغیزه نه ده کړی . ورځ په ورځ می امید راتلونکی بریوته پیاوړی کیږی.

ربنتیاخبره داده چی داطرز تفکراوډاډ منتوب می دهغه گران
ورور دمهربانیو او هڅوونو نه ترلاسه کړی دی . مادتل لپاره
دځان په چوپړکی وګڼه او خپله بی پایه مینه مه سپموی .
ورور دی ......

## ځواب

گرانه وروره ستالیك می ولوست ، ربنتیا ځومره دی ادبی
لیکلی و. که چیری په کلونورنځ اوهڅه دی نه وای منلای
اودطب مقدماتی دوره دی نه وای لیدلای حتمابه می ویلی چی
د ادبیاتویا فلسفی رشته لولی چی دومره ښه لیکی اوسم
استدلال کوی او زه پردی ډیرخوښ یم چی ښه پوهېږی . پوهه
هغه نعمت دی چی خدای خپلوټولو بندګانوته نه ورکوی.
هغه چی ښه پوهېږی . هغه ځوك دی چی سوکاله اوبی له
ستونزی ژوندلری .
که سړی په هر حالت کی چی وی دخپل ژوند بنسټ په سمه
اوپوهی سره ترتیب کړی هیڅکله به پښېمانی ورنه شی
بدمرغی دلته ده چی ټول پدی نه پوهیږی اوکله چی دخپلی
ناپوهی له کبله دبدنامی اوتباهی کوهی ته ولویدل پرخپل
سروهی اوناری سوری کوی .
داوږدوکلونو تجربه راته ښودلی ده چی دتل لپاره هغوی دبریاو
ډکرګټلی چی له هر چانه ډیر هوښیار ، بینااوپوه وو. ځوك چی
غواړی خدای وپېژنی له ځانه پیل کوی ((دځان وپیژنه ځوخدای

ویپژنی)) له همدی ځایه چینه موندلی . مه هیروه چی زه دتل لپاره دمشرورور په توګه حق لرم تاته دستور درکړم اوته هم زما دستورونه ومنه اوزما نصیحتونوته غوږ شه. زه به هغه وخت خوښ یم چی ته سوکاله اوسی .

ستادبریوغوښتونکی ، ورور دی

## اکاته لیک

پرون می ستاسوله مینی ډك لیك زیارت کړ اوله دی ټولو محبتونونه موچی زما خوار په نسبت لیکلی وو ډیره . ډیره مننه . که چیری ټول دوستان اوخپلوان لکه عالی جناب داسی دخپلوخپلوانو په سوچ کی وای هیڅکله به دژوند پیتي دانسان پراوړودرنښت نه کولای . هیله ده چی همیشه موپه یادکی اوسی .

دپلار حال می بدندی اوهمداراز ددوکان کارنه څارنه کوی .

ورور می هم چی له پوهنځی نه خلاص شویدی. ورستیوکی دمعارف په وزارت کې دښوونکی منلی دنده ترسره کوی .

دکور نورټول غړی دخدای په فضل روغ رمټ دی . موږ ټول ستاسوله بی پایی مینی نه مننه کوو اوله خدایه تاسوټولو ته روغتیا او سوکالی غواړی . ددی لیك سره یو کوچنی سوغات می در واستوه هیله ده په منلوسره یی پر موږ ټولومنت کیدی پلار او مورمې او دکورنی ټول غړی تاسو اوستاسوکورنی ته

سلام وایی . پدی ځای کی دجناب عالی امر په ډیر ویاړ استقبالووستاسووراره.

ستاسو وراره ......

# ترورته لیک

محترمی ترورجانی له کومی ورځی چی مسافر او ستاسو له زیارته محروم شوی یم ستاسوله حاله کوم خبر نه لرم .
رښتیا ستاسوله خوانه دلیك نه رسیدل پر ته له کورنی بوختوالی او دماشومانو روزنی سپځیلی دندی نه پرته بل علت نه شی لرلای . سره ددی بیاهم په عمومی توګه ځینی کورنی په تیره زه او مور می ترهرڅه لومړی ستاسو دلیکونو چی ستاسودروغتیاخبرولری لیوال یو ، زموږ انتظار دادی چی کله ناکله دځوکلموسره دا آرزو ترسره کړی . مورمی ستاسو خدمت ته لیواله سلام رسوی او غواړی چی اوس د .... میاشت مخ په خلاصیدو ده که وخت ولری زموږ ښارته یو سفروکړی ځوزموږ سترګی ستاسوپه لیدورنی شی .
په تیره بیاچی پدی میاشت کی زموږ ښار ډیر ، ډیر زړه راښکونکی او خوشحالوونکی دی . ګومان نه کوم چی پرتاسی ښه ونه لګی . تاسوپوری اړه لری .

دکور ټول غړی ستاسو دروغتیا او چوپړپه هیله .
ستانو دمینی دك لیك په امید.

## ماما ته لیك

ګران ماما دویم لیك درلیږم پداسی حال کی چی له ځواب اخیستلویی ډاډمن نه یم ....
تاسی بی ځایه له مانه خپه شوی یاست. باور وکړی چی له مانه ډیره لږه غوندی خطاهم شوی نده که ستاسو ټول دستورونه اوامرونه په پوره توګه ترسره شوی ندی ګناه یی زما په غاړه نه ده . تاسی ماته دهغوپه ترسره کولوکی واك راکړ. پدی مانا چی وموفرمایل زه باید دکارونو څرنګوالی وڅیړم .
باور وکړی که می له دی نه زیات ټینګار کاوه آن دلاس ته شوی پیسی لسمه برخه هم نه ترلاسه کېده دهغوی دعاید وضعه ښه نده ددی وضعی سره څنګه کولای شی خپل ټول پور په یوواری خلاص کړی . ماستاسو دوینا سره سم داسم وګڼه چی پری قسط ماتول سل په سلوکی ستاسوپه ګټه ده داځکه چی نه دبل کوم سندجوړولو ته ضرورت شواونه پرهغوی کوم فشار راغی اوبرسیره پردی دهغوی رضاهم ترلاسه شوه . دادی ټول خوښ دی او تاسوته دعاکوی .

له لری نه دی لاس ښکلوم اوستاسوبری اوسوکالی له څښتن تعالی نه غواړم .

ستاسوخوریی ....

## څواب

ګران خوریی لیك دی ورسید ډیرخوښ شوم په تیره بیاچی زیارونه دی ګاللی مننه ډاډه اوسه هغه به جبران کړم دقسط ماتول ډیر پرځای او آن زه حاضروم چی یوځوروپي دی هغوی ته ښنبلی هم وایی . یعنی چی له پور نه یې لرښوی وای اوډیرزضایت یی ترلاسه شوی وای . انتظار لرم چی نور پاتی کارونه هم په هماغه پوهه اوهوښیاری چی په تاکی ماموندلی ترسره کړی ، زه هم پرخپل قول اووعده ولاړیم . سپارښت ته اړتیا نشته زه به څنګه دا کوچنی چوپړله تانه وسپموم .
دارښتیاده چی هوښیار اوتدبیروال یی . اما دنیازر ښنی لری او ډیرخلی انسان دخپلوغوښتنو پرضد وضعی سره مخ کېږی اوله دی ځایه ده چی سلاکول دپاملرنی وړګرځیدلی ده .
که ماخبرکړی ښایی مرسته وکړی شوم هر څرمره چی زرنګ او کارپوه اوسی بیاهم زما غوندی دبوډاګانومرستی ته اړیی زما مرسته ستادکارونوپه ترسره کیدوکی در سره مرستندوی

کیدی شی هیله ده چی لا ډیر توفیق ومومی هماغسی چی می ولیکل له وعد ی نه می ډاډه اوسه .

ستاماما . . . .

## اکازوی ته لیک

داکاګران زویه پوره یوه میاشت شوه چی له ( ) تللی یی ښایی پدی ستربنارکی هرورځ اوهر ه ګړی په زرګونه نوی پیښنی رامنیځته شی ترهر څه لومړی ستاتلل اولری والی ما ته ډیرد اهمیت وړدی او پریشان کړی یم .هره ورځ ستاسوکوټی ته سروهم له دیوالونو اودروازواولوښی.یی ستاسویاد تازه کوم اوخوږی ورځی چی سره څنګ ترڅنګ اودتولګی له لوستونو نه موګټه اخیستله پری چرت وهم .

زه نه پوهیږم تاسی دومره له موږه لری نه یاست او دیوی اویادوومیاشتو په ترځ کی بیادزده کړی ادامی ته ښایی ( )اوزموږ کورته به راشی اماسره ددی هم کارسره می ډډه نه لګی او داسی ښکاری چی کوم څیز می ورك کړی وی.

له دی ځایه پوهیږم چی دوستی اومحبت څه بیساری دارووده او څنګه چی انسان وګړی دوست وګڼی غواړی ډیر ښه اوزیات کار وکړی او ژوندی پاتی شی .

پرون ښوونځی ته ولاړم له نیکه مرغه زموږ دواړو دآزموینی نتیجه ښه وه . ډیر خوښ یم چی ستادمنلوړانه دښه سوغات په توګه دلیك سره دروړاندی کوم زما سلام دمحترم اکااوخپلی مورخدمت ته ورسوه ترراتلووړاندی زماډیر ه خوښی داده چی که په( ) کی کوم کار یااړ تیاولری ماته ووایی .

قربان دی . لاسلیك .

## ماما ته لیك

ګران ماما ، پرون یوله آشنایانو نه پخپل لیك کی ستاسوله ناروغتیانه موږ خبرکړو.

باور وکړی له هغی شیبی نه دخوښی او آرامی نور زموږ له کور او د زړه له کوره تللی !

داسمه ده چی ناروغتیااورنځوری زموږ دژوندانه عادی څیزونه دی اوهرڅوك تریوی اندازی له هغونه برخمر دی ولی هرڅومره سوچ کوم نه شوم کولای ځان راضی کړم چی زما دګران ماماوجود کی پاتی نه وی پرتیرد بیامورمی ترټولو ډیره ستاسوله ناراحتی نه ځوریږی او تیره ورځ یی ستاسوخدمت ته تیلګرام لیږلی وه. دایوازی کلمی ندی بلکی دا کلمی دټولی کورنی ویانده ژبه ده چی زه یی دهغی په لیکلواولیږلو تاسوته مامورکړی یم .

پلارومورمی اوټوله کورنی ستاسوخدمت اوستاسومحترمی ښځی ته سلام رسوی اودعالی جناب روغتیاغواړی او ډیرمی

غوښت نژدی ډیر زیات له تاسو سره خبری وکړم څنګه چی ناروغتیامو اجازه نه راکوی نور ارزښتناك وخت مونه نیسم ستاسو دبشپړی روغتیاپه هیله .

خوری مو . . . . .

## ګرانی مهربانی ترورمی

هره اوونی چی مولیکونه رسیدل لوستل می اوپوهیږم تاسی زموږ په وړاندی څومره مهربانه یاست اوهیڅکله نه هیروم چی کله می مهربان پلار ناروغ وپه څه ځان تیریدنی اودشپی بی خوبیومنلوسره پرستاری وکړه .
ربنتیاچی ستاسو مینه زموږ په زړه کی ځای نیولی که کلونه تیر او د روزګار پردی دهغه مخ وپوښوی هیڅکله می له خاطره نه محوکیږی . ستاسوآسمانی څیره له هغی مورنی موسکاسره لکه دپرښتی پشان غوړولای ده .
موږ هم دا اخلاص په یاد ساتو اونه یی هیروو. دترورلورته می سلام ورسوی اوزما له خوانه یی پوښتنه وکړی .
یوه موده شوه مورته لیک نه لیکی، پوهیږم چی ډیره بوخته ده . هیله ده چی تل روغه او دخوښیو اوسوکالیوسره غاړه غړی وی .

تاسونه ځار...

## زمادگرانی تروروزویه

له کومی ورځی چی تللی یی ماته دی لیکلی ندی. کله ناکله داسی اندراځی چی دی دومره وخت کی دشپی چی سره یوځای اوسیدوپرتاترخی تیری شویدی چی و دی نه غوښت له موږه یادونه وکړی . خدای وکړی داسی نه وی . پدی چی ته می دزړه له کومی خوښېږی اوګومان نه کوم چی ددی کلونوپه ترخ کی چی زموږ سره وی زموږ لخوا کومه خطاشوی وی که چیری کوم څه په مینځ کی وای تراوسه دی ماته لیکل داځکه چی زه تاښه پیژنم ته داسی څوك نه یی چی په زړه کی دی څه وساتی .

په هرحال منتظره یم په خپل خوږ زړه یواوږدلیك موږ اوټولی کورنی ته ولیکی اودا سؤ تفاهم چی ښایی ستادلتی نتیجه وی چی دنه لیکلونه رامینځته شوی له مینځه یوسی . انسان څه عجیب موجود دی او دهیڅ څیز په قدرنه پوهیږی .

کله چی یوبل سره وی او ددوستانو په تود غیږ کی وی دانعمت نه پېژنی اما کله چی دا نعمت له لاسه ولاړ بیا خواشینی شی.

ستازړه دیوی نړی صفااودوستی نه کیسه کوی. په تیره بیاچی پوهیږم زموږ کورنی ته داحترام په سترګه ګوری.
بی پردی وایم چی زما دهنداری په خیال کی ستاانځور لکه داسمان پرښتوپاتیږی اوزما خواته یی وزرونه پرانیستی دی ددی خبری په مصداق چی زړه ، زړه ته لارلری پدی باوریم چی ته به هم په زړه کی دمینی احساس وکړی .
هغه چی تابه هیڅکله هیره نکړی .

# ا کاته لیک

کران او محترم اکا هیله من یم چي تل خوښ وښاد اوسي قیمتي سوغات مو ورسید نه پوهیږم څه ډول د هغه ګران اکاله مینی نه خوښی‌څر ګند کړم اوله خدایه غواړم یووختي ستاسو دومره درني میني په وړاندي زه هم ستاسو چوپړ وکړي شوم
تاسي لیکلي و چي د .......حمکي مورو ...... کورسند
ستاسو حضورته در ولیږم. دادوه سندونه چي په پخواني لیك کي چي دوه ورحي ترمخه مي لیږلي اوفکرکوم چي په همدي یو دوه ورحوکي ورسیږي دژرندي د سیند ترغاړي حمکو په برخه کي تر اوسه کوم کار تر سره شوي ندي داځکه چي شاهدانو ته اړتیا شته او دکلي د ملاامام د مړیني له کبله څوورځي شاته ولوید.

سیند ته ورنژدي دپله کار خلاصیدوته نژدي دی مافشار
راوستي
چي ژمي د فصل را رسیدو او ترورید مخکي خلاص شي
اوپردي عقیده یم که یوتکړه مهندس معمار دڅارني لپاره
دلته راولیږي بي ګټي به نه وي .

په درناوی

## ځواب

ګران وراره. لیك دي ورسید په اړه.......... ته پخپله له
هرچانه ښه پوهیږي چي زه له تا نه څه شي نه سپموم تول شته مي
ستادي اوته مي دخپل سترګوتوراولادپشاني یي. پدي اساس په
هیڅ توګه داسمه نده چي زما د مرستو په موردکي ځان پوروړي
وګڼي. د پرمخ پرتو ستونزو په حل کي ستاطاقت وړونکي
زیارونه په رښتنی توګه د ستاینې وړدي اودازه یم چي باید د
هغه د جبران په لته کي واوسم ستالیږل شوي سندونه ورسیدل او
امیدواریم چي د ژرندی .... تر غاړي حمکو په اړوندهم برې
ترلاسه کړي .
لیکلي دي وچي پل د بشپړیدوپه حال کي دي نو لازمه ده چي
کوم مهندس دوروستني لیدلو لپاره هلته ولیږل شي زماپه
عقیده ښه ده چي ته پخپله په نیغه هغه ته یو لیك ولیکي که څه
هم دایو عام المنفعه ( ټولنیزي ګټي) لپاره یو عمل دي اومور ته

خاصه ګته پکي نشته نو دهغه دغوښتنی سره سم حق الزحمه ورته ورکوم اوته خپله کولای شي له هغه سره کارسمبال کړي اوماته حساب راکړي . ستاسر لوړي او بري غواړم

اکا دی.

## ایلبند ته لیک

دسترګوتوره داکازویه ځوورځي کیږي چي ازموینه مي تیره شوه اوډیره رسختي هم لرو البته تاخپله ازموینه تیره کړه او بل کوم کار هم نه لری د ستړیا لری کولو لپاره ښه به وي چي زموږ کلي ته راشي اودوبي زموږ سره پاتي شي اوهیله ده پدي ځاي کي هوسا اوسي .
ددي ځاي هواسره ددي چي اوړي دي سړه اوخوندوره ده په ورځو ورځو چکر وهواو دسرچینو، ښونو، د غره لمنی، سیند ونو او کښتونه خوند واخلو له سیند نه کب نیسو او بڼ په کوچني ډندکي به ولامبو د بڼ له نه پخپل لاس به میوه و اوښو اوکله به هم دغنم لو، دبوټی پري کولو اودمیوي په اوښلواودمیږو په رودلو به په تماشابوخت شو اوهره ورح به

تازه خواړه وخورو هیله من یم کله چي ښارته بیرته راګرځي له هروخته خوښ اوتکړه اوسي.

دلیدو په انتظار دي

## ځواب

داکاجان زویه ډیرخوښ شوم چي زه مو خپل کوروکلي ته رابللي یم دیوي اووني په اوږدوکي دښځی او پلار جان په اجازه په ډیره مینه چوپړته رسیږم. او دکاکاجان اوکاکاجان دزوي لاسونه ښکلوم.

اماپه عوض کي ته هم بایدوعده وکړي چي د ( ) په میاشت کي ښارته راشي اودښوونځی ترپیل کیدوپوري ځواووني زموږ سره پاتي شي

د ښارهوا اوس توده ده اماپه هغه وخت کي مخ په سړیدوشي اوپه ښارکی هم ډیردلیدني شیان شته مازیګري به سره چکر وهواوښارهم څه ښکلی واټو نه اوښکلی ډګرونه لري لوړي بنګلی چي دښوونځیو جوماتونو کتابتو نو نواودولتي ادارو ته جوړی شوي مثال یی په کلي کي نه لیدل کیږي او ډیر د لیدلو وړ دي د خلکو ګنه ګوڼه او د موټرو ډیروالي چي په واټونوکي تګ راتګ کوي سړي مشغولوي په مغازوکي دخواړو

ټوکرانواونورلوازم په ښکلي توګه ایښودل شوي اودهغوي تماشاډیره په زړه پوري ده شپې له مخې بریښنا دکوڅې اوواټونو مغازي لکه ورځ روښانوي اوځني خلك هم په سترو واټونوکي تګ راتګ کوي اوځیني سینما اوتاترته ځي.
البته د سینما ټول فلمونه ښه نه دي ولي ځیني وختونه روزنیز اواخلاقي شه فلمونه هم لري.
باورلرم چي ددي وسایلو تماشابه تاته په زړه پوري وي اوهیله ده له ښاره کلي ته دتګ په وخت کي د ښارڅخه یادګارځان سره یوسي.

حاردي شم

## خپلي ښځې ته لیك

ګراني ښځې‌اوس له تا اوکورني مي لرې پروت یم پوهیږم چي له څه نعمته محروم شویم څوك چي ښځه نه لري کهول نه لري شپه او ورځ حیران او سرګردان (سربداله) هرچیري ولاړشي مساپراو کډوال دي او ددنیاخلك یې په نظرکې پردی ښکاری.
یوهم نشته چي زړه یې دهغه پرحال و سوزي او دمینې او مهرباني له مخي ورته یوه موسکا قدره هم وکړي چرته لاړشي چي ځاي یي وي اوبه قدریي پوه شي.
هلته یي چي دوست وګنې‌اوراتګ یې ولمانځې چیرته دې نه پوهیږم که ووایم چي لري والي مي له تانه تر هرڅه ډیر ځوروي اوازاروي باور به و کړي که نه؟

که څه هم تل ستاپه یادکي یم اوکومه سوکالي مي چي ستاد وجود له رڼا موندلي نه شوکولا هیر کړم اما پرون شپه ستاخیازما ټول اند(فکر)اوحواس نیولی وه.دشپې یوه برخه تیره وه چي دهوامارغه اونورالوتونکي پخپلو ځالوکی ننوتی وو،اوددښتواوښارځناوران هریوپه ګوښه څنډی کی غځید لی ویده و.یوازی زه وم چي دیوی کوڅی په منځکی می قدم واهه.

نه پوهیږم څوځلي می ددی تنګی اوتیاری کوڅی واټن په اوږدواوسورووواهه اوبیرته را ګرځیدم.

زړه می نه غوښت دخوب ځای ته می ولاړشم اوویده شم زړه می نه غوښته ددي لپاره چي پوهیدم هلته چي دښځی او اولاد ساه کښل ناوریدل کیږي داستراحت ځای ندی هلته چي دژوند نښه نشته په داسی ځای کی فکرکیدای شی څوشپی سړی تیر ی کړی؟

سوچ می وکړ اوس چي پریشانه خیا لونه می خوب ته آرامه نه پریدی ښه به داوی چي دځینوآشنایانو پوښتنی ته لاړشوم اوپه لیدلویی خپل تږی اروا خړوب کړم. نابېره له دی فکره راته خنداراتله .یادیده می چی دوی هم زماپه بی درما نه دردګیر اودکورنی له بیلتو نه ځوریږی. پدی حال دوی به څنګه وتوانیږی مالدی وحشته چي پخپله پکی ګیردی وژغوری .

آیا له لوړی ډوډی نه ګیرپاتی دی . دوی دټول دنور وعواطفوته
تږی دی . دوی هم له مینی ډکی یوی موسکاته اړدی و دوی هم
ناروغه دی او دوړواو دخپلی کورنی په تمه دی .
څوګړی می دوحشی خیالونو او افکارو ترتوفان لاندی تینګار
وښوداوکوښه می په اوږدو اوسور وو هله نه پوهیږم همدومره
پوهیږم چی یوځل می حس کړنورنونه شوم کولای ګام واخلم .
افکارو اوبیلابیلوخیالونو فشار زما دتوان خواك له مینځه وړی
وڅه وکړم او چیرته لاړشوم ؟
سپوږمی ټول ځای نیولی وه اوپرته زما له سیوری نه چی لکه
دبدمرغی شبحی ښی اوکیڼ ته متمایل کیده ، دبشرکومه نښه
هلته نه لیدل کېده . نابېره ورخلاص شواودیوسړی هیکل په زړی
اوخېرنی بستری کی ولوید .
ګرانی ښځی دا می دژوندد هغوګړیواو شیبیوه نمونه وه چی بی
له تاثیریږی . آیا ددی افکارو اوخیالونوپښانی ورته ستاپه
مغزوکی هم پیداکیږی ؟ ته چی ښځه یی اوښایی له نارینه ونه
ډیره حساسه اوسی زماله بیلتونه خپه یی ؟
داهغه څه دی چی زه پکی تردیدنه لرم .

دخداپامان زما دارمان پرښتی

## دوستانه لیکونه

نیټه

دوست ته لیك

منلي مشره سلام وړاندي کولو او دارادت عرض نه وروسته ان شاالله چي روغ اوسلامت یاست اوزه د پخواپشاني د خدای په مهرباني روغ رمټ یم څو موده مخکي مي ستاسوناروغتیا خبر واورید بیحده وارخطا اوغمګین شوم ولي له دومره لري واټنه مي پر ته له حوصلي اودخیر دعانه هغه ګران دوست دروغتیالپاره څه نه شو کولاي بل کوم کارتر سره کړم ترڅوچي په ډیري خوښي دروغتیاخبردي ورسیداو داخبره زماد بیحدي خوشحالي سبب شو او دي ته یي اړ ایستم چي دهوابدلولو لپاره چي ترموده وروسته ستاسو دلیدني له برکته ګټه مو په برخه شي تاسو ته دتشریف راوړلو بلنه در کړم هیله ده ددي غوښتني په منلو سره زماد سر لوړي زمینه برابره کړي .

ستادوست

## دوست ته لیك

ګران دوسته : داچي دي په لیك زه هیرونکي شمیرلاي یم بي ځایه تصوردي د آزموینې ترخلاصیدو وروسته مي ښار پریښود اودي محلی‌ته راغلم چي څوورځی آرام اوله دړي وړي فکرونه خلاصون مي په برخه وي پوهیږم چي دد ي کلمو تر لوستلوبه

موسکي شي و به وايي چې بيامي دا دوست د خيالونودلاس
ښکار شوي اوله خپل بخت او برخليك سره جنګيږي ماو پتيل
يوه برخه مي د فکرونو تاته و ليکم ځوپوه شي چي په تصورکي
دي تيروتي يي لکه کب چی له اوبو ووځی اوهغه عالم ورسره
پردي ونه پژني زه هم همداشان له ښوونځی ووتم......رښتيا ده
چي پلارمي بوخت دي اوکولاي شي له هرپلوه زماد خوښی او
سوکالي ضامن شي ز ما لپاره هرڅه چمتووي او ماپه هغوي کي
پرته دخاطر ملامتي بل څه نه ليده او هغه څه مي چي پلته نه مي
موند .خوشحالي او ښادي له کومه سري موندلي شي رښتيا
داده ناسته پاسته کرځيدل او خبري اتري چي زه له خپل هم جنسه
پوښتنه کوم هيڅوك مي ونه موند چي مي په مقصد پوه شي تول
مي لدي نيولي وضعي نه تعجب کوي اويو له بله پوښتي :
ولي يوازي کيني ؟
له ډلي ځني تښتي ؟
ګوښی ناسته خوښوي ؟
په دردونکي خنداخلکو پوښتنی ته ځواب وايي مالدی وضعي
اونظم سره مينه نده کړي نه شوم کولاي لدي ژوندانه مايوسه
شوم نه شوم کولاي ..
که چيري مورمي ژوندي واي ښايي د هغي موجوديت زما
غوسي له مينځه وړي واي افسوس چي دوه کاله د مخه مي
مورله لاسه ورکړه او دهغي له ساتني ځارني او مهرباني نه بی
برخي پاتي شوم اوپرته له پلارمي بل څوك نه لرم.

پلارکه.څومره مهربان خاطر پالونکي او اولادپالونکي وي کولای
شي دمور ځای ونیسي ؟
داوښکي داڅاڅکي بیرہ وکړه پرکاغذ ولویده څه چاره ؟ هغه
پاکه کړم توررنګ سره یي وچه کړم نه انصاف نه دي داڅاڅکه
مي د مور په یادګارله سترکي څڅیدلي ګرانه اومنلي ده پریږدم
پاتي شي دهغې ځای ښکلوم دردیدلي زړه ته مې پدي وسیله
تسلیت ښښم که غواړي کولای شي زماد ښکلولو ځای و پیژني
داجمله که چیري مې مور ژوندي وای وو ینه داوښکي ځای
څرګند دي اود مور کلمي پرمخ پرته ده .
مور د څه لپاره پیداشوي یو مورمې ولې دنیاته راغله اولاړه
راتګ یي دهمدي لپاره وچې ما یوازي پریږ دی؟ داژوندي ؟
ولې زماپه سترګو دنیاتوره تیاره ده آیاداپریشاني په هر زړه
داتشویش په هر ما غزه دا.اوښکه په هر ه سترګه کې شته ؟
ددي بیان تر لوستلوښایی نور اعتراض ونکړي اوما نازولي او
هیرونکي نه شمیري ممکنه ده زماغم تا وغموي معذرت غواړم
د زړه خواله مي وکړه اوکه د خپګان ویره نه وای ډیرڅه به مې
لیکل.

## ګران دوست

تاماسره وعده کړي وه چې هره اووني به درته ، لیکم اما له کومه
وخته چې دلته راغلي یم آن یوځلي دي هم لیکلی ندي داسې
ژړدي خپل هم تولګی او دوست هیر کړ؟

اما پوهیږم ته له هغه بیوفا دوستانو څخه نه یې هرومرو خوورځې به کلي ته تلاي وې په کلي کې هم پسته خانه نشته لږ تر لږه به دې څوکربنی لیکلي واي ستاځاې شین و تیره اوونې له بناره دباندې دغره شني پاکي لمني ته تللي وم دسینداوبه له یوې خوااومیوه لرونکي ونې له بلې خوا قیامت کاوه زه او صادق د غره سرته وختلواو له لوړې مودبنارمنظري ته کتل چې له ګلواوشنو پو بنلي و دسري زړه کیږې دژوندتر پایه پدې پاك کلي کې پاتې شې د کلیوالو ژوندغوااومیږې اوتازه شیدې لوشلې ځانکړې صفا اوخوندلاره.

هرکله به چې داتازه شیدې اوپنیر په کلي کې خوړل ستاپه یادلویدم چې دسهارنې لپاره دښونځی تر څنګه له لبنیات خرڅوونکي نه دې پنیر پیروده چې دخوړلو وړنه و.

داکلیوال څومره زمونږ لپاره زیار باسې تر څو پنیر اوکوچ تیارکړي اما مونږیې په قدرنه پو هیږو . ډیردی نه ستړي کوم ډیر څه دویلو لپاره لرم چې له زړونه مې یوندې ویلې ان شاالله راتلونکي کې به تاته لدې لیك نه بل لیك په پښپړه توکه ولیکم.

ستا دوست

## دوست ته لیک

محترم دوسته څوك چې خپل دوست ته خیانت کوي هیڅکله ددوستي وړندې پدې نړي کې چې له نارامیواوناخوالونه ډکه ده اوډژوندستونزې لکه د غره پشانې د ځینو اشخاصو په وړاندې د

بریالیتوب خنډدي دریښتني دوست قیمت نه لري: لـه پخوانـه ویل شوي :

به صد سال دوست آید بدست...... به یك روز دشمن توان کرد

کله چې یو زړه اویوه ژبي دوست په دومره زیاروزحمت ترلاسه کیږي نوولي یې دومره وړیا له لاسه ورکوي ؟ که داسي نده نو ښایي ووایم چې ته زماپه دوستي شکمن یې اوماپه کلونو کلونود مرستي په څرګندولو له بده مرغه ونه شو کړای چې ځان څرنګه چې ښایـي تاتـه در وپیـژ نـم هغـه څه چې ماتـه لا پـته ښکـاري همدامسله ده دپخوانی اوړورنګی دوران دوستی په درناوی لـړ. ترلږه ووایه چې کوم څیزته یی زما په اړونـد بد بینه کړي یي زه ستاداعمل پرته له بد بیني نه په بل څه تعبیر ولاي نه شوم

ګران دوسته دښمن تـه هم خیانت منلي کار ندي، زه چې تادتل لپاره خپل دوست ګنم دوجدانی دندي پربنسټ نصیحت کوم چې تـردي وروستـه پخپلوکـارونوکي سـوچ وکـړي اوځیراوسي ستا اوستادخپلوانوسوکالي دي کار پوري تړلي بي ځایه اوناروا

قضاو تونـه چې د خیانت او ورانوکارونو سبب ګرځي دسوکالي مانۍ نړوي حسابي تکی. له هرچانه واوره ولوکه ان له مانه چې په ظاهر کي دي له ډیروسختو غلیمانونه یم!

ستا دوست

# ځواب

ښاغلي........ له نصیحتو موډیر خوښ یم ستاسو لیک تر هر څه زیات یو داسي نصیحت لیک ته ورته دي چي نصیحت کوونکي له ستړي ماغزواومنقلب روح نه کیسه کوي زه ستاسو داروحي انقلاب پرته ستاسوله بي پایه پښیماني تعبیر ولاي نه شوم.

په لیک کي موځوځلي له خیانته یادونه کړي ستاسوپه منظورپوه نه شوم ایادیوتریخ اونه منلو حقیقت څرګندونه د هغه چا لخوانه چي نه غواړي هیڅکله دخپل ملګري په جرم کي شریك شي خیانت بلل کیږي ؟

محترم .... تاسي بیځایه سوکالي ککړوی کومه سوکالي مومنظور ده سوکالي څه ته وایي او هغه څنګه تعبیروي ؟

ایاسوچ کوي چي یوموټي ناوړوکارونوته سم ویل سوکالي ده که داسي سوچ کوي واي ستا سو پر حال تاسي ما خاین ګڼی داپه بشپړه توګه ناځوانمردانه نسبت دي ښه به واي چي د تیردوران دفداکاریوپه درناوي دځان تیرید نو اوپخواني سپیڅلي دوستي په درناوي لږتر لږ ه دي زما یاره کي ښه اوسم فکرکړي واي ژوند څه خوب اوخیال ندی ځوك چي ځان تر نوروپوه ګڼی ترهرچاناپوه دي څوك چي په خپله لار بلد نه دي هیڅکله د نورولارښود کیداي نه شي زیار وباسي خپله لار وموميي لارښوونه موبیرته دراخلي.

دوست دی.

# دوست ته لیک

په وروستی لیک کی دی چی راته لیږلای و، پرون راته ورسید لیکلی دي و: نه پوهیږم چیرته یی ؟ مړیی که ژوندی ؟
ګران دوسته .ډاډه اوسه چی په هره توګه ژوندی یم داځکه چی زما په نظرهیڅ بل کوم داسی شی دژوند په کچه ګرانه اوخوندورندی ، لدی پلوه حاضرنه یم په اسانی ورنه لاس واخلم اوداسی وړیا مړشم .
ولی ژوندی ونه اوسم ؟ ولی څه خبره شویده اوڅه پیښه رامیځته شویده چی زما په ژوندی پاتی کیدوکی شکمن شوی یی ؟ داسی سوچ کوی چی ژوند شوتله ده چی په اوونی کی یوځل یی له باغچی نه وریبی اوبیا سرراپورته کړی یاسابه دی چی هرکله یی وغواړی له بازاره وپیری اوهر کله چی ونه غواړی لری ایسته وغورځوی .
انسان یوځلی دنیا ته راځی اولنډه موده چی سلوکلونوته نه رسیږی پدی دنیا کی نشته اوبیا دچوپتیاو وادی ته سفرکوی .
ایا ستاسو په نظردالنډعمرهم اوږ د ښکاری ؟
هما غسی چی می وویل زما په نظرپه هر حال ژوند خوږاود دوستی وړوی اوهیڅ څه له هغه سره انډول ګڼلای نه شوم که دنیا راته خپل ښه مخ راځرګندوی اویا ناساز ګاری او مخ اړونه . په هرحال ژوند خوندور اومنلی دی .

ډیر کله داسې کیږي چې ځینې وګړي پخپله ژوند پرڅان تر پخوي . علت یې دادې چې په دایمې توګه ژوند له هغو شیانو سره تړي اوتصور کوي چې دومره سره اریکې نه لري اوترلاسه کول یې هم مشکل بریښي ډیر لږکسان دي چې پخپل نظرکې ژوند له بډایي . شته مقام ، او شهرت سره مجسم نکړي یا ښکلي موټر اوبڼ اوماڼۍ له هغه نه بیلهد ونکي ونه ګڼي .
ځرګنده ده چې ځرنګه چې ښه شیان په نړۍ کې لږدي اوتولو ته نه رسیږي ځوک چې ژوند ددې شیانو سره یو ځای وګڼي دتل لپاره به بدمرغه وي اوپرله پسې به ویني خوري چې ولې ورنه بې برخې دي .
پرتامې سوګندچې لکه دغولندفکروکسانو پشاني ژوندځان ته نه ستونزمن کوم .
داسمه ده چې اوس له اتومیاشتونه واوښته چې نارامه ژوند تیروم اوکوم معاش چې زمادکار په اړوند راکوي همدومره کیږي چې وخورم او ونه مرم اوبیاکله چې سوچ کوم چې ژوندی یم یوه نړۍ خوښي احساسوم . داسې خیال ونکړې چې زه لکه درویشانو اوزاهدانو له شتونه بد وړم ، نه . زه زاهدنه یم که چیري دفورد راکفلرشته مانه راکړي په ډیره مینه به یې ومنم . ولې اوس مې لاس ددنیاله شتو تش دی ، ډیرهم پرڅان سختې نه راولم اوبیځایه هم غوسه نه خورم .
مشهورمثل دی : چې خدای دسوکالیواسباب شتمنو ته ورکړي او سوکالي فقیرانوته .

دامتل خومره له معنی ډك اوڅنګه دلوخوخوښوانسانانو دسوکالی راز مور ته راښیي .
ښتیاچی که سړی هوښیار وی بیځایه د دنیاغم نه خوری ، ستاسوپه نظردشخصي موټراوټکسی ترمینځه څه توپیردی ؟
زما په نظرکه سړی دټکسی کرایه ولری زربرابره دشخصی موټرپه وړاندی سړی تری خوند اخیستی شی . داپردی چی له سورلی یی ګټه اخلی او دورانیدو اوماتیدو اوپه زرګونه نور وسرخوږ یونه یی خوندی پاتی دی .
له تاسونه یی نه پټوم ، په قناعت هم دومره عقیده نه لرم . څکه چی انسان هیڅکله په یوحال نه پاتیږی . بناپردی دتنګسه په حال پرته له قناعته بله چاره نه لری اودشتمنی په حال کی قناعت ډیر ناوړه عمل دی . نوداچی وویل شو که انسان پوه وی له خپل ژونده ښایی داسی ګټه واخلی چی ورسره سم وبریښی له معنی ډکه اوپخه خبره به وی .
که لږ څه ځیرشو وبه وینو چی ټولی خبری بردریو ټکوولاړی دی .
نوهغوی چی نتیجه یی پریښی دوه لاسی پرمقدمولګیدلی دی بی ماغزه کسان دی اوبرعکس څنګه چی څوك نتیجی ته ورسید مقدمی ته اړندی ، که موټر، بڼ ،مانۍ دشخص نیکمرغی سبب نه شی لرل له نه لرلو ښه دی که انسان وکولای شی پرته له دی ټولو خوښ وی دی شیانو ته دومره اړتیانه لری . کله چی سره یو ځای وو په هوساسختیوکی به ګډه سره دطبعیت تماشی ته دباندی تلوپه واروارمی ویلی دی چی هر څوك یوی معنوی

متکاته اړتیالری څودهغی په پناه کی وکولای شی دژوند ستونزی وګالی . زما متکاهمداډول فکروکیدای شی . باور وکړه که دا ډول فکرنه وایی زه به وختـه له پښنو غورځېد لای او اوس به پدی نړی کی نه وای پاتی چی ستالیك ولولم اوځواب یی ولیکم . چی ژوندی یم . ولی ژوندی ونه اوسم .....

امضا

## لیک ځواب

نېته ....

ګران دوست .... ستاکاغذ ورسیدډیریی حیران ( اریان ) کړم له لومړی تر پایه له غم ډك و ، پو هیږی ماپه توکواوشوخی عادت کړیدی ، لومړی می غوښته له لیك سره دی شوخی وکړم اماستا دلیك لیکنی اغیز زه یی خپه کړی یم غوارم و وایم ستا په کاغذباندی هیڅ پوه نه شوم ولی دی . کاغذونو ته دی پرځان لاره ورکړی ده ؟

دځوانی په پیل کی داسی متفکر اوخوا شینی توب یعنی څه ؟

څنګه باید باور وشی چی ستاپشانی یو دوست ته ناممکنه وی دکورنی معاشری نه تېښته وکړی اوله کورنی وضعی نه خوند واخلی ؟ خیال کوی له ژوندانه سترګی پټی کړی کله چی په ښوونځی کی وځینی کتابو نه دی لوستل اوځینی خبری دی کولی ، دهماغه کتابونو اغیزی ، هماغه زه دے خندکېدلم

اوپوهيدم چي يوه ورځ به يې نيتجه سمه نه وي . ښه گرانه دوسته ستاحسابي تکي څه ده ؟ وغمواري که ونه غمواري بايد ژوندوکړی ته چي سره اوسپين لري دي نږي تياره وينې ، په احتياج نه پوهيدلاے وي عمر په دي خيال اودنه خوشي ضايع کوي؟وائي چي څواني يوه ستوري ده چي يوازي يو ځلي دژوند په اسمان کي راخيژي غواړي دا ستوري ولويږي اوپرته له حسرته درته څه شي پاتي نه شي ؟ستاسوپه ښارماهر گندونکي موندل کيږي چي وتوانيږي هغه لوړ اوموزون اندام ته په نوي شاني جامي سمبال کړي؟

ستاسو په بازارونوکي ښکلي او نفيسي ټکي (توکران)نه خرخيږي؟ستاسو په هيواد کي دځان له سينګاره خبرنه دي؟ په تيره بيادجامي مسله يادوم نه ښائي غفلت وکړي .

ايادومره ژړاواويلا دمور له بيلتونه کوي ځاي نيسي اودا اوښکي اوسوي ساندي هغه گرانه پرښته بيرته راگرخوي شي؟

ستادوه کاله کيږي چي مورنه لري اوزه پنځه کلني نه يې موره يم خوښ او تازه اوسه اودافکرونه له ماغزووباسه که بله کومه ستونزه وي هيله ده بې پردي ماته وليکه اودزړه رازراته په ډاگه کړي... ستا دروغتيا او ليدلوليوال......

ستا غمخواردوست

# دوست ته لیک

یوازنی نازنین دوسته دارادت ترعرض وروسته هیله ده تل پخپلو تولوکارونوکې دې بریالي اوسې.

دوه اوونی شوی ستادلیك په انتظاروم اوستا سو لخوا کوم خبر ونه رسید له ځان سره مې ویلیچې ادم ځان خو دومره بیرحمه نه او----درسیدلو سره سم ئـې لیـك استوه اوزه یې پخپـل حـال خبرولم.

اه چې څومره زړه درپسی خپه شوی واوستا دیوی شیبیلیدل مې دځان په بیه غـوښت اوس تاسی پـه مسـاپـرت کـې پـائي خـوږه دمساپری احساس کوم .

دزده کړی په دوران کې چې سره ځنګ ترځنګ وو ددوستـی په ارزښت نه پوهیږو ولې څو اوونی ددوستانوبیلتون سړی ځوروی .

که ستاسو پتـه مـې پـه کـره توګه لـرلای پـه دویمـه ورځ لیـك استـوه پخوانیو به ویلی چې دمساپروتګ نه وروسته لیك مه لیکه ولې موږ پردې خرافـاتوعقیده نه لـرو اخـر ولـې دمسـاپـر وتـګ وروستـه ونـه لیکواوله هغه سره لیدنه تازه نکړو ددی علت څرګند ندی .

داسیډیری نوری خبری شته چې هیڅ دلیل ئي څرګند ندی په هـر حـال ستا له بیلتونه ډیرخوریدم تـر څومې تیـره ورځ ستـا لـه مینی ډك لیـك ترلاسه کړ اود زړه سـترګه ئـي راتـه رڼاکـره اودخنـدپه علت پوه نه شوم داچې مې تاته بې مینې یا بیرحمه ویلی ځان ته شرمنده یم .

ګران دوسته مساپرت داشیان لری بي چاره پخوانیوچې له اوښ یا خره سره به سفر ته تلل او دیولنډ سفرلپاره به ئې دوی میاشتي په لارکې

تیرولې حق ئې لاره چې دبیلتون له رازئې ژړل اوشاعرانو به له سوزوګدازه ډك شعرونه ویل مثلا

شرح شوقت مینوشتم دیده خونبارګفت

جای سر خیهاش را بګذارمن خواهم نوشت

په ربښتیا چې له دوستانو لرې والی او بیلتون ډیرګران دی ولی اوس له نیکه مرغه پخوانی دوه میاشتې لاره موږ په دووګړیو کې وهواو پست وتلیفون وتیلیګراف هم شته چې هره ګړی له یوبله خبر اخلو او خبر ورکوو.

ښه دی وکه چې وروسته له ځای په ځای کیدو دی ژرترژره ولیکه اوزړه مي غواړی کله چې څوك لیك لیکی دیوی ورځپانې په کچه دی ولیکی .

وینی چې زه پخپله هم همدا کار کوم نه پوهیږی ستا دلیك ترلاسه کولو نه څومره خوښ شوم زړه مې غوښت له خوښی نه وژاړم او د ښادی خندا پیل کړاما مور ناسته وه وغږمی پورته نکړ.

هغی ورځی نه چې ته تللی ئې بل څوك مې کوتې ته ندی راغلی پوهیږی چې ډیر دوستان نه لرم له ----سره هم نه غواړم ډیر ه راشه درشه وکړم که څه هم په لوستوکې ئې ښه دی اوهم سپیڅلی او صمیمی ولې ډیر سګرت څکوی اودیوی کوچنی موضوع لپاره دعواراپاروی .

ښه ده حق لری هغه سړی چې زړه اولاس ئې پاك وی تر څو ووایې چې دسترګی دپاسه دی وریځی دی خپه کیږی ، ولې مور مې ماپر کوی چې هر کله ----- دلته راغلی کور درپریږدی.

داده چې زیاتر ه په کورکتاب لولم اوله یوازیتوبه ستړی کیږم کله غواړم چکر ته ولاړشوم یا هم یوازی یم اوځوریدلی اوله مشرانو سره

هم پر ما ښه نه تير يږي موږ غواړو له كتاب اولوست اوداسې شيانو نه خبرې وكړو ولې هغوى له سوداګرى اوپيښنه اوله اوږدو ليدنو خبرې كوى.
له خبرودى ډير ښاد شوم اوهيله من يم ډير ژر راشى‌او هركاركه
----- ولرى پرته له كوم خبرى‌وليكه په پاى كې ستاسو سوكالى اوښادى له يو رنګو دوستانو سره له خدايه غواړم.    دليدنى په هيله دى—

## دوست ته ليك

نيته ----
ګران دوسته دناروغتيا خبرله اوريدو دى بى كچه وځوريدم اوله خدايه غواړم چې ددى ليك تررسيدو پورى ورغيږې.
په واروارمې درته ليكلى‌چې لږڅه ځان ته پام كوه داښتيا ده چې دژوند په ډګركې كار اوزيار دبرى شرط دى اماروغتيااوتكړه توب هغه نعمت دى چى خداى پاك بنده ګانوته وركړى او موږ ته ښائي چې ددى نعمت په قدر پوه شو او په ساتنه كې‌ئي زيار وباسوكار او زيار دروغ وجود اوبشپړ ى ارامتيا او داستراحت غوښتونكى دى اوته دومره په كاروزيار كې ډوب ئي چې استراحت دى پر ځان حرام كړى دى.
هڅه وكړه چې تردى وروسته دځان څارنه وكړى ځوانى هم دردونه په زنځيركې را ښكيلوى اما همدا چې عمر زړښت ته مخه كوى دا په زنځير كې را ښكيل شوى دردونه زنځيرونه شلوى او پر انسان حمله كوى بناپردى يو هوښيار سړى په بشپړه توګه دځان څارنه كوى او په ځوانى كې دزړښت دورځو حساب هيروى.

هیله ده چې دا کوچنی ناروغی تاته دعبرت لوست په راتلونکی کې وی هغه راتلونکی چې نه زه او نه ته ورنه خبریو.
زما لخوا نه وروراوښځی‌ته ئي سلام ورانـدی کـړه دلیـك خوابونوتـه سترګی په لار دوست دی

## ددوست لیك ته ځواب

نیته ----

ګران او مهربان دوسته لیك دی هغه وخت راورسید چې دیوی اوونی ناروغتیا او استراحت نه وروسته له کوره بهر چکرته وتلی وم تول هغه څه چې دی لیکلی وو زماد تائید وړدی.
معالج طبیب می هم راته همدا ویل او څرګندئي کـړچې زه اصلا کومـه ناروغی نه لـرم او دا نـاروغی ددیر کـار او دبی کچـه فشـار لـه امله ده چې پرځان مې منلی و.
پـه هـر حـال اوس مې یو څه روغتیا موندلـی دپښی او لاس دردمی پـه بشـپړه توګه رغیدلای او عصبی تـوب مې لـږ والی موندلـی ورورمې غوارې یوه میاشت یا لږ ترلږه پنځلس ورځی ----ولاړشم اولـه دوستانو او اشنایانو سره لیدنه وکړم.
اما اوس ددی کار حوصله نه لـرم چې څه بـه کیږی داسـتی او سـتړیا زمـا دتول ژونـد پـه اوږدوکې کومـه سـابقه نـه درلـوده اوهمدا ده زه ئـي ویرولای یم ماپشانی یوسری ته چې شپه اوورځ پـه کـار وهڅه کې وم وزګار تیا یوه بلا ده .

دادی هره شیبه مې په لوستلو تیرېږی او اقرارکوم چې نوی هغه څه مې زده کړی په تیره بیا هغه مطالب چې تراوسه راتـه څرګند نـه وو ربـتیا مطالعه څومره ښه ده او اوس پوهیږم چـې څومره ئې ښه ویلی دی کـه یو مطلب ولوکه هر څومره ډیر. کوچنی هم وی دیو کتاب پـه کچـه دسری معلومات زیاتوی .

زما تود سلام ټولو دوستانو اومشرانو ته وړاندی کوی که چیری مـې ----دراتګ تصمیم ونیـو تـا خبروم ستا خوښی او سوکالی دخدای‌لـه درباره غواړم .                    لاسلیك

## یو دوست ته لیک او ښه لیکلوکیله

ګران دوسته

تاسی چې هرکله لـه وفانـه خبری کولی لـه دریـو میـا شتو نه ډیر موده شوه چې -------تللی یاست او سره لدی چې وعده موکړی وه چـې لږترلـږه بـه پـه میاشـت کـې یـو لیـك دراستوم تر اوسه پوری موله خپل حاله بی خبره ساتلی یم . مانادا چې له خاطر نه مو محوشوی یم او دا چې وائـي: ((لـه زړه لاړشی هغـه څه ځی لـه سـترګو)) حقیقـت نـژدی شـویدی کولای شم په جرات ووایم چې دنه لیکلو علت ډیر ه بوختیـا ده نه هیرونه .

ولی هیله من یم تا سی پخپله کوم علتونه او خندونه چې په مینځ کې شته ولیکی

ستا نژدی دوست

## څواب

نازنین دوسته سوچ کوم چې ستاسو زړه داشاهدی وائي چې زما دوستی له تا سره خلل نه منونکی ده اوزماضروری چوپتیاپه دی موده کې دهیرونی په علت نه دی بلکی کورنی بوختوالی دمور ناروغتیا دلیکلو خنډو او اوس دخدای شکر هغه رغیدلی ده او پدی باور یم چې دوخت تیریدل دلاري واټن اودژوند پیښنی نه شي کولاي زما پر دوستي اوصمیما نه احساساتو کي خلل پیښن کړی او ډیر وختي لری والی نتیجه برعکس ده چي دحضور قدر څرګندوی.
هیله ده تردي وروسته ماته ډیر ژرلیك ولیکی‌اوتاسی‌هم لکه پخواپشانی ما له خپل مهرباني او یو زړه والی برخمن کړی که کوم کار په...لری ماته په ترسره کولوکی ئي ویاړوبخښی. ټولودوستانو اواشنایانوته سلام به مي ورسوی.

ستاسوارادتوال....

# دوست ته لیک

ګران دوسته دنیکمرغي اوبدمرغی تر مینځه یو ګام واټن دی ولی ځینی همدایو ګام هیڅکله له مینځه وړی نه شی.

داچی وایو نه شی کولای ددی لپاره ده چی نه غواړی ځکه غوښتل کول دی ځوک چی دیوی پیښی منلوته چمتوشی دهغی پیښی نیمائی برخه یی له منځه وړی ده.

ژوندون دتضادونواوتناقضاتونه اوډل شوی ترکیب دی ذمولانا (جلال الدین بلخی) داضدادو جمعی ته ژوند نوم ور کړشوی دی که ځوک دلومړی پیښی په وړاندی ځان وبایلی او له پښوولویږی دپیداښت بنسټ نړیږی.

زما ژوند ستا لپاره چی له نژدی شاهد او لیدونکی وی سترلوست دی ،هغه لوست چی هوښیاراوعاقبت سنجوونکی سړی دټول عمرلپاره ترینه ګټه اخستی شی .

زمادرنځونو او بدمرغیو زرمه برخه تا نده لیدلای پرله پسی نیول، ماتی اودښمنی ګانی ئي چی له ماسره وکړل.

که سم سوچ می نه وای کړی کافی وچی می له پښی وغورځوی اما ماچه هماغه نارامیوپه سختوشیبوکی ځان هیرنکړاو ټولی اندیښنی می یوپربل پسی له منځه یوړی او دډیرکار اویرله پسی زیارپه مرسته می ځان له پرزیدووژغوره ما غوښته اومی کړی نو ته هغه که وغواړی کولای شی.

هيرنکړی چی دوخت څرخ پرشانه څی دریدل پخپله پرشاتګګ دی وای
پردیچی یوګام وروسته پورته کړی.
لاسلیك

## څواب

زړه سواندە دوست خومره می لە هوښیاریاوسم
تفکراودخاطرارامتیانه خونداخیست ستالیك پرما دومره اغیزه
وکړه کە چیری سل کتابونه مي هم لوستلای وای دومره ئیځان ته
نه کاږلم.
تا زمادسترګوله مخیدبدبینیوتوره پرده لری کړه دلیك پە
لوستلودی تیر یادونه واړه می تر سترګوشو هغه تیروخت چی لە
خوږواوترخو خاطرونه ډك دی.
ستاوضعه می ښه یادیږی اقرارکوم کە چیري ستا پر ځای وای
هیڅکله می هم توان او زور نه درلود ستا عمل تر هرڅه ډیر یوی
معجزی ته ورته وه کە چیری عادی خلك هم وکولای شی معجزه
وکړی تا معجزه کړیده.
عجیبه داده چی ماپه واروار خپلودوستانوته نصیحت کړی ته می
مثال راوړیئیَ ویلی می دی چی لە کاربسره مینه لە ځانه تیریدل
حوَصله او زغم لە تانه زده کړی اوما هیڅکلە ستا کارونه دخپل
ژوند سرلیك ندیګرځولای.
ستا لیك لکه داعجازکونکی دارو زمادر دئي نابېره دواکړه نه
پوهیږم ستا په کلماتو کې څه اغیز پروت وچی لکه تیزاب ويي

سیزلم او اغیزمن و داسی اغیزچی له اره ډیر سوزنده او زه داده یم چی دژوند ترپایه به نه محوکیږی.

داده اوسه چی زه نور ستا دخو ورخومخکی دوست نه یم زه به نور هغه عاصی او دتیر واووینو بدبینه غم څپلی سړی نه یم.

له دی وروسته به ته هغسی ووینی چی غواړی اوزه به هغسی یم چی نه وم زما تودسلام تولومشرانو ته ووایه ستالیکو نو ته ښاریم.

لاسلیک

## پولیک

مهربان دوسته ...

پرون چی یوه قطعیخواږه راته کړی و ورسیداوله هغی مینی نه دی چی څرګندکړی و بناد شوم په ضمن کی ډیره مننه چی هیر کړی دی نه یم وایم که خواږ ه پر ځای دی یوه قطعی سره غوښه لیږلی وای ډیره به ښه وه دا ستا تیر وتنه نده بلکی کلونه کلونه کیږی چی زمونږ هیواد پری اخته ښکاری.

مونږعادت کړی چی همیشه تفریحی او تجملی څیزونه ته د ژوند انه پر ضروری څیزونو دلومړی توب حق ورکړو.

تاماته چی دخوږو قطعی ولیږه اوزه تاته غمناکه لیك او څورونکی خواب درلیکم البته هیڅ می نه غوښتسه دا حیاتی موضوع په داسی وخت کی یاده شی ولی څه وکړم چی تردی بل داسی ښه مناسب وخت د بحث لپاره نشته کله چی دخینو پیښو خاطره را

په زړه شي نڅدي‌ده دقهر له ډير والي خپل ګريوان څيراو چيغه کړم!
دا تصور دهغو هيوادونو ډير وڅوانان لپاره چي په کلونوکلونو دتمدن مثال لرونکي ولاهم خپل ژوند سمبال کړي ده دي زما په نظر دنياتوره تياره کوي.
زه اديب او ليکوال نه يم چي وکولای شوم هغسي چې لازمه ده او ښائي دا لوړ حقيقت شرح کړم دليکوالو دنده ده چي دعشقي کيسو پرځای چي ځوانان او پيغلي تيرباسي او دخيال په بڼ کي ئي ننه باسي هغه مطالب وليکي چي دهغوی په کارشي اودهغه چراغ په شاني وی چې دهغې په رڼاکي خپل دپښي وړاندی ووينی.
تردي وروسته زياربا سم هرکله چې درته ليکم دخپلو احساساتو مخه ونيسم ولی نه پوهيږم چې داکاربه وکړی‌شوم که نه؟
له سوغات نه دي مننه....

لاسليک

**استاد ته ليک**

تر هر وخته ډير ستاسو خبرواترو او پخپله تاسو ته اوستا سو دوستي ته ارتيالرم زما حالت کرکيچن دي وروستي څلي‌چي يوبل موسره وليدل ستاسي‌پام دی حالت ته واوښت څنګه چې پر تاسو داده يم ستاسوسره کولای شوم خبری وکړم نه يوازي تاسي په ښوونځی‌کې زما استاد واست بلکی لکه يو شل کلن ځوان چي په ګوښ ځای‌کې راسره ناست وی.

اوس سبق وایم یعنی داچی حقوقی کتابونه پیرودلی او په پوهنځی کې مې نوم لیکلی ترراتلونکی میاشت کی به پیل وکړ اود زوئي په میاشت کی ازموینه ورکړی زه هماغسی دلاتین او یو نانی پر زده کړی بوخت یم او ښائي دتل لپاره همداسی پاتی شوم.

ددی ستری دوران پرخوند مین یم ماته د((تاستبوس))یو لوړنقش لری اودمدیترانی تول نقش لرونکی دی هماشنې او پاکی څپی هماغه لمر هماغه افق می پر له پسی په اندیښنوکی ګرځي اوکله چې څه لیکم قلم مي له لاسه اخلي اوکله چې کوم کتاب لولم هغه مې له لاسه غلاکوی هماغه پخوانی وسوسه مې لیکنه ده په نتیجه کې کوم کار پر مخ بیولی نشم که څه هم ډیر له وخته راپاڅیږم اوله هر پخوا وخته ډیر لږ چکرته ځم.

دخپلی هستی شیبی ته رسیدلی یم باید پرمخ ولاړشم که پرشا هرڅه مې تر مخه دمرګ وژوند مسله ده همیشه می فکر تولوم څه شی له خان سره لرم چوپتیا او یا دتولی نړی پر خلکوباندی به څه خیال نه ساتم نه حسوم چې ددی بی ارزښتی دنیالپاره به جوړ شوی یم اوبرعکس.

دشاعرانوستایل ورځ په ورځ راسره ډیر یږی او په هغه کې تل داسی نکتی وینم چې پخوامې نه وی لیدلی.

دهغوی دکلام دقت په رښتیاچي ډیز ژوردی او زه ددریوداستانو دلیکلوپه تصمیم یم چې له بلة بیلة بڼه لری او هریو باید په ښواوبوخروب شی ددی داستانولیکل به کافی وی چې ماته ثابته کړی ایا کومه قریحه لرم که نه؟

خپل سبك حس اواندیښنه څومره چې لرم په دوی کی وزدننه کړم بیابه ووینو.

ستاسو زده کوونکی...

# بناغلی استاد

اوس چې ډير واټن له تا نه لرې يم کولای شوم خپل احساسات وليکم داستاد انو نصيحتونه اوښو ونې وي چې لکه دمهرباني خور زمونږ سره ر فتار کوي هيڅکله نه هيرېږي نه هيروم کوم وخت چې يو زده کونکي خپل سبق سم نه لوست، يا کورنی دندی نه ترسره کولوکی لتی کاوه تاسي به خومرخوريدی داچې دزده کړې په موده کی ستاسوپه قدر نه پوهيدو او موږ سوچ به کول زموږ دپرمختګ لپاره څومره زيار موا يست .

زما يادېږي چې يوه ورځ په تولګی کې پر ستوری څو بيدلای هر هغه وخته نه پوهيدم چې ستوری څه دي اما تا سو په ډير صبر او حوصلې څومره ښه مطالب مو توضيح کول .

رښتيا هم که ښوونځی ته نه راتلو زموږنه به څه جوړيده لکه دنا پوهو هلکانو پشان به کوڅه دب ګرځيدو اما له هغې ورځي نه دښوونځي غولي کې مو ګام ايښې دي داستادانو او د ښوونځي درئيس مهربانو څير او خوندور خبرومووږني هڅولو.

ډير مې ستاسووخت ونيوه اماډير مې زړه غوښت ستاسوله زيار ونونه مننه وکړم په وروستی ورځ مې غوښتنه ستاسو کوټی ته درشم جرأت مې ونکړ.

له ځان سره مې وويل اوس چې مسافرت ته ځم دځو تکو په وسيله به دخپل استاد له شپږ کلنی زياره مننه وکړم

له تاسونه ځار....

# رسمي او اداري مراسلات

د ....... ښاغلی وزیرته !

ستاسود ۵۵۰ نیټه / / هدایت پراساس موقوفه ملکیتونه چي په .... ناحي کی موتعیت لری په // نیټه دماموریت ځای ته ورسیدم .

ترلا زی څیړنی وروسته اودټول موجوده شیانونه چي په ماښی کی شته دمحکمی اوداملا کوداداری دځریو په مرسته داسنادویو نقل می ځان سره واخیست پدی وسیله می په لنډه توګه ستاسوحضور ته ولیکل او په مفصله توګه به په پټه په بل رپوټ کی عرض کړم .

په درناوی ...

# دروغتیا وزارت

لوړ حضور ته په درناوی وړاندی کیږی!

سره ددی چی د .... ښار ډیره برخه له نل نه برخمنه ده اوټول حمامونه ښایی په همدی سیستم سمبال وی د .... ښار په .... ناحیی دیوحمام نل په پرله پسی توګه چټل اوبه لاروی په تنګ کړی او مخینوی یی نه کیږی .

ځنکه چی د ښار خلکو دروغتیاساتنه هغه وزارت پوری تړاولری
ښایی ډیرخلك په خطرناکوناروغیووا وړی غوښتنه کیږی چی
ژرترژره دی څیړنه اومخنیوی وشی ددی وزارت پاملرنی ته
سترګه په لاریو.

ددی وزارت پاملرنی ته سترګی په لار.

## دعدلیی ښاغلی وزیرته

محترما عرض دادی چی ... ګنه دوسیه چی مدعی زه ...
مدعی علیه ... دی له یوی مودی نه له هیره وتلی ده غوښتنه
کیږی چی نومړوری دوسیه مسوولو مراجعو ته د غور لپاره
وسپاره شي او نتیجه یي اعلان شي.

په درناوي.

## د کار او ټولنیز وچار و لوړ مقام ته

په ډیر ادب سره عرض کیږي چې زما ... او د ښاغلي ... د
فابریکي خاوند ترمینځ شخړه را مینځته شویده زما د معاش یوه
برخه راته نه راکوي. خپل احترامات وړاندې کوم او د لازمې
فیصلې امید واریم.

لاسلیك

# د ښاروالۍ مقام ته

مونږ د واټ او واټ اوسیدونکي د ښاغلي ښاروال له کټور او ډېر پر ځای اقدام نه د واټ په بیاجوړنې کې ډیر خوښ شو. ستاسو او ټولو کار کوونکو نه ډیره مننه.

تل روغ اوښاد اوسي.

# د لارو ښاغلي وزیر ته

محترما عرض کیږي چې د وروستي اوربښت له امله د ... واټ او ... ښار واټ یوه برخه ورانه شوې ده غوښتنه کیږي چې دخلکو د هوساینې او وسایطو تیرېدنې، راتیرېدنې لپاره هغو مامورینو ته چې د واټ په بیا جوړنې بوخت دي لارښوونه وکړې د ژر لیږدونې لپاره د دې د دوو ښارونو خلك او د ددې هیواد وګړي له ځانه خوښ کړي.

لاسلیك.

# د ښار څارندوی ته

په ډېر احترام خبر درکول کيږي چې څو ورځې تر مخه زما ... په کور کې چې ... واټ کې پروت دی غلا وشوه يوه اندازه ضرورت شيان غلو يوړل او وي څورولو، بې له ځنډه جريان محلي حوزې ته خبر ورکړی شو. له نيکه مرغه د ښاغلی ډګر من... په هڅه غل ونيول شو او قانوني مراجعو ته وسپارل شو. هيله ده چې زما قدر پيژندنه د محلي حوزې ټولو افسرانو او کارکونکو ته ابلاغ او د هغوی د هڅولو زمينه برابره شي.

په درناوي.

# د کرنې محترم وزارت

محترما عرض کيږي د هغه ځايه چې جناب عالی خبر دی د کرنې پرمختګ لپاره له علمي اصولو نه کار واخيستل شي او د پرمخ تللو ماشينونو په وسيله دا کار ترسره شي. دې موضوع ته د پاملرنې له امله دا شرکت په نظر کې لري چې يوه اندازه د کرنې تراکتورونه او نور کرنيز ماشينونه د بزګرانو واك ته وسپاري ترڅو پدې وسيله وکړای شي د علمي اصولو په نظر کې نيولو سره له خپلو کرنيز و ځمکو نه حاصل ترلاسه کړي. په پای کې د يادولو وړ ګڼي چې ددې شرکت کار کونکي له مقدماتي لارښوونو او دمرستو نه ځان نه سپموي چمتو دي چې خپل صنعتي ماشينونه په اوږدې مودې په قسط چې بزګران يي توان

ولـري د مینـه والـو واك تـه وسـپاري او ضمناً چمتـو دی چـې د موجودو ماشینونو او وسایلو سره هغو ځایو نو کې چې د څنباك او کرنې اوبو ته اړتیا وې د ژورو څاګانو په کینلو لاس پورې کړي او د قسط په توګه یي اجوره تر لاسه کړي.

د ... صنعتي شرکت

# د روزنې او سپورت وزارت

زه ... د ... ګنې شهادتنامې لرونکی چې خپل تحصیلات مې د ادبیاتو په برخه کې بشپړ کړي او دلیسانس په اخستلو بریالی شویم ، تصمیم لرم چې د روزنې او سپورت لپاره د خدمت پـه اړونـد یـو شپږ صنفي ښوونځي جوړ کړم . دا دي د شـهادتنامې فوتوکاپي او د تذکرې دوه کاپي د یو باب ښوونځي د ... پـه نـوم دجوړولو اجازه راکړي.

په درناوي.

# د ځواب غوښتنه

اداره ...

د ... ګڼې په تعقیب

هیله ده لارښوونه وشي چې هر څومره ژر دي ددې ادارې .. ګڼې ... نېټې مکتوب ته چټك ځواب ووایي او کوم اقدام چې مو د نوموړي ادارې په غوښتنه کړی وي دا اداره خبره کړي.

د ادارې مشر.

## یوه بله نمونه

د م. ب. و محترم شرکت ریاست ته

زه... چې څوکاله مې د پلازمینې په مهمو شرکتونو کې د محاسبې په برخه کې کار کړی او د سوداګرۍ په برخه کې لیسانس لرم له هغه مقامه هیله ک۰۰۰۰۰۰۰۰۰وم که په نوموړي شرکت کې کوم تش بست موجود وي د مقررېدو ویاړ را په برخه کړی. د یادونې وړ ګڼم چې حاضریم دیوې اوونۍ لپاره د آزمایښت په عنوان هم کار تر سره کړم.

لاسلیك.

## د کرنې محترم وزارت

محترما څنګه چې د هغه وزارت مشرتابه ته څرګندده ی د هیواد.. نیمه دملخو له خوا تر تهدید لاندې ده. هغه سیمې چې دملخ آفت پرې لګېدلای وار په وار د کرنې سیمه ایزو ادارو لخوا مرکز خبر شویدی او مسوولي اداري پرې خبرې دي. که د ملخو دمخینوي لپاره بیړنې تصمیم ونیول شي ښه به وي. دا پدې چې سږ کال د کرنې حاصلات ښه دي نه یوازې دا چې د دې سیمې د خلکو لپاره کافي ګڼل کیږي بلکې د هیواد د نورو سیمو اړتیا هم پوره کولای شي په خواشینې سره باید وویل شي چې ددې سیمې د

کرنې اداره د کافي بودجې د نه لرلو له امله او هم د ماهرو کار کونکو د نشتوالي له کبله په ځانګړي توګه له دې بلا سره مبارزه نه شي کولای. لدې پلوه ددې ولایت وګړي هیله کوي چې د ماهرو کار پوهو او لازمو وسایلو د ملخ دلـه مینځه وړلو لپاره ددې سیمې د خلکو خواړه د ملخ له ناتاره وژغوري.

د ولایت د ټولو بزګرانو لخوا

# د مالیې محترمې ادارې ته

د معذرت پر غوښتو سره تکلیف درکول کیږي چې:

د وار وار سپارښتنو سره سره چې هغه محترمه اداره دخوږي او بورې مامورینو ته ورکړ یدي بیا هم لور هغو نه ځینې له انصافه وتلي او برسیره پر دې چې په بیلو بیلو پلمو خلك ځنډوي او وخت یې ضایع کوي له ځینو نه یې ډیرې پیسې اخیستي او لږ جنس ورسپاری. هغه وګړي چې پرې ظلم شوی دوې ظالمانه عمل علت د دې ادارې د مامورینو او د څارنې هئیت نه پاملرنه ګڼي نو هیله کیږي چې امر ورکړي چې په لومړي سر کې دي د دې ښار د ټولو برخو پر کړو تفتیش وټاکل شي او دویم دی د خرڅونکي چې بې انصافي یې له حده اړولای د قانون پر حکم مجازات شي څو دخلکو پر حق دي نور څوك تیری ونکړی.

امضا.

# اداره

د ... تن امرونو او صادره احکامو په پاملرنې سره لازمه ده هر څومره ژر د هغې ادارې موجوده اثاثيه حساب عمومې ادارې ته راوليږي. ډيره ښه وه چې پورتنې امر ټولو اړوندو شعبو او نمايندګيو ته ابلاغ کړي ترڅو د وزارت امر په خپل وخت ترسره شي.

# د صنايعو وزارت مقام ته

د ... ادارې د ... ګڼې درپوټ په وړاندې کولو هغه مقام ته عرض کيږي چې د ماشين پيرېدلو لپاره بودجې ته اړتيا ده د محاسبې مديريت د ... ګڼې ... نېټې مکتوب په اساس غوښتنه کوي چې اجازه راکړ شي د بودجې پاتې اضافي برخې نه د ... افغانيو په حدودو کې ولګول شي.

تاسو ته وليکل شو چې خپله موافقه د نوموړي بودجې ځينې تعديل د محاسبې مديريت واك ته وسپارى.

# د روغتيا محترم وزارت ته

ځنګه چې زه ... په دې وروستيو کې د درمل جوړولو پر ليسانس اخستلو بريالى شوى يم او قصد لرم چې يو درملتون د ... واټ کې پرانيزم او د عريضي سره يوځاي مې د ليسانس تصديق وړاندې کړ هيله ده چې د جواز نامې د مقرراتو سره سم د يو درملتون امر زما په نوم صادر کړى.

په درناوى

# د مرستيالي مقام ته

ځنګه چې د کارموندلو عمومي ادارې د ... ګڼې په رپوټ کې موفرمايلي دي وټولو هغو کارکونکو لست چې د کلنې د ترفيع وړ وى جوړ او وروسته د مبارك حضوري منظوري اخيستلو نه ځرنګه چې امر کوي د مقرراتو په حدودو کې صادر او عملي به شي.

# د پوليسو محترم ماموريت ته

ځرنګه چې په دغه ... نېټه کې زماد واده نېکمرغه جشن په کور کې جوړيږي هيله ده ديو نفر ساتونکي په ليږلود امنيت ساتلو لپاره مرسته وکړي او ما د خپل احسان پور وړى کړى.

پته ...

## غوښتنلیکونه

دمقررید وغوښتنه

د ....... اداري محترم ریاست ته زه .... د .... نمري تذكري لرونكی چې په .... كال كې مې خپل تحصیلات بشپړ كړیدي اودادي دتحصیل سندفوتوكاپي هم وړاندې كوم دمحترم ریاست دځانګړي ملرنې اولطف پراساس كه په مناسب كار وګومارل شوم په خپلو دندوكې‌به سمه پاملرنه ولرم .

پته ....... نېټه – لاسلیك

په درناوي .

## دپاسپورت غوښتنه (۱)

د ....... سرحدي‌محترم ځواك ته

د روغتیا اداري سند او دوبادواكسین سند اودتذكري دفوتوكاپي په وړاندې كولو سره عرض كېږي چې زه دتداوي‌په نوم ... تلونكی یم هیله من یم چې امراوهدایت وركړي زما په نوم دپاسپورت یوه كتابچه صادره كړي .

لاسلیك

## دپاسپورت غوښتنه (۲)

ځنګه چې زه .... له خپلې کورنۍ سره دحج فریضې په ځای کولو اراده لرم.
پدې توګه په ډیر احترام غوښتنه کیږي چې .... هیواد دارتیاوړ پاسپورت داجراکولو امر نو مورږي شعبې ته ورکړي.
لاسلیك

## درسختی غوښتنه

دمحترمي اداري ریاست .... ته
محترما ځرنګه چې تاسي خبرلري زماسوافق په .... دوسیې کې داپه ګوته کوي چې په .... موده کې ماله قانوني رسختیونه ګټه نده اخستتې. اوس دځینې کورنیوکارونو اودمور ناروغتیاله کبله ....... ښبارته تلونکې یم پدې توګه هیله من یم له اړوند وزارت زما لپاره ددوه میاشتې رسختی غوښتنه وشي.

ستاسوله ډیرې پاملرنې نه مننه

# په از موینوکی دنوم لیکلوغوښتنه

د ....... دپوهنی محترم ریاست

زما ....... چی دشپی ښوونځی که می خپل لوست بشپړکړی دپوهنی وزارت دکار کونکوله ښه سلوك نه خوښی څرګندوم اوغوارم چی ماته دمتفرقه داوطلبانو په ست کی دنوم دلیکلوزمینه برابره کړی ترڅوپه از موینی کی ګډون وکړی شوم .

ډیره مننه

# دملکیت سندغوښتنه

داملاکوثبت محترمی اداری ریاست

زما کور اوباغچه چی د .... ناحتی په .... کوځی کی موقعیت لری او له ډیری مودی داپدی خوا ثبت ته رسیدلی اواعلان شوی هم ده خوتراوسه لادمالکیت سندیی صادرشوی نه دی .

هیله ده نوموړی اداری ته په دی اړوند امروشی چی زما دستونزی په حل کی مرسته وکړی .

په درناوی

## دجلب او احضار محترمو داری ته

دیراحتراما نه عرض کیږي:

زه ...... د ..... زوی د .... نمره تذکری لرونکی دعسکری سپیحلی دوری تیرولوته جلب شوی یم . څرنګه چی می پلار په ..... کال کی له نړی سترګی پټی کړی اودکوراسرپرستی زما په غاړه ده هیله ده دپورتنی معذرت په نظرکی نیولوسره پدی اړوندلازرم تصمیم ونیول شی او نور وشعبوته خبرورکړی شی .

## دهغه جناب له پاملرنی مننه

د .... ضفی‌اتحادیی محترم ریاست
دتذکری دووپاڼوفوتوکاپی اوځلور قطعی عکسونو اودمحلی مشرموافقه ولیږل شوهیله ده زه ..... ددی اتحادی په غړیتوب ومنل شوم او دغړیتوب رسمی کارت صادرکړی .
دتذکری مشی غوښتنه

لاسلیك ..

# دسر شمیرنی محترمی اداری ریاست

ځنګه چې دخپلي تذکري چې .... نمره يې ده مشنې ته اړيـم ددې غوښتنليـك په وړانـدې كولـو سره هيلـه ده اړونـد وشـعبوته امروركړی . نېټه

د ..... بانك محترمي اداري ته

لاسليك .

په ډيرادب اواحترام عرض كيږي چې دلاژ موسندونو په وړانـدې كولوسـره هيلـه مـن يـم دبـانكي مقرراتوسـره سـم د ...... افغانيوته وكور جوړولولپاره اړتياده .

په ډيره درناوی

# "دمقرري غوښتنليك"

د .... اداري محترم رياست

محترما عالي حضورته عـرض كيږي چې زه د ....... تذكرې د .... زده كړي سند متوسطه دوره مې تيره كړې اوپدې وسيله ددا داري، اوزنيزاوفني كار غوښتنه له هغې محترمې اداري نه كيږي .

ټول سندونه مې دغوښتنلیك سره یوځاى ستاسوحضور ته وسپاره ستادلطف په مرسته به زما دمقررى حکم صادرشي . زه به په پوره صداقت اوایمانداري خپلې چارې پرمخ وړم .

لاسلیك

## دمشنى صادر ولوغوښتنه

د.... ښار د ..... محترمي اداري ته

محترما عرض کیږي چي دیوى میاشتى نه راپدي خواپه ....
مرض اوښتى یم اوددي ښار دمعالجوطبیبانوپرله پسي زیار کومه سمه نتیجه ورنکړه داپردي چي دګټورو وسایلو نشتوالي زه یې اړایستم دروغتیا اداري درئیس د ..... مکتوب لرلوسره ما .... ته دحقوقونه په ګټې اخستلوسره رخصت راکړي .

په درناوي

## دهویت تشخیص محترمي اداري ته

په ډیره درناوي‌یوه یا نه دتذکري نقل اودري قطعي عکسونه له دى غوښتنلیك سره وړاند شوي هیله ده دتعامل سره سم زما ...
دوراني سابقى نه لرلو تصدیق پانه راولیږي اودستونزي حل لاره مي هواره کړي .

ستاسودبریاوغوښتونکی

# دپور غوښتنه

ښاغلی ....
زما او ستاسو دښوارېيکواوپخوانی علايقوله امله ځان ته اجازه ورکوم ېچی له تاسونه د .... پاتی افغانيو چی سخت ورته اړيم دليك وروړونکی ته وسپاری .

په درناوی

# مبارکی ګانی

ښاغلی مديرته
اوس چی نوی کال په ډير ډير برم رارسيدلی ماهم فرصت غنميت ګڼلی . دزړه له کومی مبارکی ستاسو حضور ته وړاندکوم .
ستاسو زده کونکی

**ګران دوسته**

له خوښی اوښادی نه ډك واده اودنوی ژوند پيل مبارکی تاسو اوستاسومحترمی ښځی ته وړاندی کوم هيله من يم چی ستاسوګډژوند دسوکالی اوبريوسره مل وی .

ستاسو اخلاص مند .

**گران دوسته**

دنوی کال مبارکی تاسواوستا سو محترمی کورنی ته وړاندی کوم . ستاسو بریالیتوب دلوی خدای له درباره غواړم .

ستاسواراوتمند .

**مشرورورہ**

ستاسو تاکل د . . . . وزارت د . . . . اداری دریاست په لیست کی تاسوته مبارکي وایم هیله من یم چی دلابریاواوسترو پرمختگونو په لورگامونه پور ته کړی .

ستاسو ورور

**مثلی دوسته**

هیله من یم چی زما مبارکی دملی اختر (جشن ) دنیکمرغه رارسید وله کبله ومنی . خدای دی وکړی چی داجشن ستاسو لپاره دلوړو بریاو زیری شی .

لاسلیک

## گران (گرانه )

اوس دلمرخندا له خوښی نه دروزگارزړه لړزوی اوطبعیت له خوښی نه گډیږی او لاسونه راړوی . خپل دمینی سلام دزړه له کومی مبارکیوسره تاته وړاندی کوم اوله لری واټن نه دی مخ ښکلوم .

لاسلیک

## "ګران دوسته"

اوس چي روزګار دنو روز دنیکمرغه لمر په راختلوسره له سره ځوان شــوی زه هــم ســتاد ښادی ، روغتیـــااو تـــازه ګی غوښتونکی یم.

لاسلیک

## مینه ناکی مور

خومره خواشیني یم چي سږکال دلاري واټن له امله ستاسولاس ښکلولونه چي زما له پاره منلي اختر دی محروم یم . له خدایه غوارم چي کلونه کلونه ستاسو دمیني ډک سیوري زموږپرسروی . پدی توګه دزړه له کومي احساسات اومبارکي هغی خوږی مورته مي وړاندی کوم اوږ دعمراوروغتیادی غوارم .

ستازوی .

## مبارکی

دنوروز دنیکمرغه اختر مبارکي هغی محترمي کورنی تـه وړاندی کوم ، رستاسو تولي اوکورني روغتیا له خدایه غوارم .

## بله نمونه

دنوروز داخترپه مناسبت دوخت نـه پـه ګټي اخستلوسره خپل خالصانه مبارکي وړاندی کوم هیله ده تول ژوند موله خوښیو اوسوکالیوسره وی .

## بله نمونه

دنوروز دنیکمرغه اومبارك اخترله امله په پاك زړه ډیره سو چه مبارکی ستاسو حضور ته وړاندی کوم هیله ده چی پدی نوی کال کی دکورنی ټول غمری له سترو بریاو نه برخمن وی .

## بله نمونه

اوس چی دنوروز نیکمرغه را رسیدلی او طبیعت موږ ته دصفا اوخوښی ورځوزیری راکوی هیله من یم چی پدی نوی کال کی هغه خناب سوکاله وی اوخپلی شپی ورځی په ښادی تیری کړی .

## استاز وته مبارکی

دهغه جناب تاکنه د ...... په شوراکی دزړه له کومی مبارکی وایم اوډاډه یم چی هغه جناب د انتخاباتی حوزی خلکوپه گټه به گټور گامونه پور ته کړی .

## گران دوسته

دعالی جناب پیوند ته د ... محترمی کورنی سره مبارك وایم ستاسواوستاسو محترمی ښځی ته دخوښی اوسوکالی هیله کوم

ستاسودوست

# تیلګرافی لنډه مبارکی

په نوی کال کی دمشر روغتیا او بریا لیتوب غواړم.
دواده مبارکی په دی توګه تاسوته دمیرمن... سره دواده پیو ندمبارکی وایم ستاسو سوکالي غواړم.
خداي دي وکړی دژوند په اوږدوکی ښاد او خوشحاله اوسی.
هغه چی ستادخوښی غوښتونکی دی.

## دمقرري مبارکی

د.... تاکنه چی دپوخ له منلو او لایقو افسرانوځني د.... ښاردامنیتی قوماندان په توګه ا انتصاب شو ی ورته دزړه له کومی مبارکی وایم، دندي په سرته دسوولو او وطن ته دچوپړ په لارکی ورته دبریاو هیله کوم.

نوم......

## دریاست مبارکی

دښاغلي.... تاکنه چی دتولني له خدمتګاراونونه دی د.... په ریاست کی دزړه له کومی مبارکی وایم هیله ده چی دتولنی ګټواوخدمتونوکی بری ورپه برخه شی.

# تسلیتونه

## گرانه دوسته

ستاسو دځوان ورور ناببره مړینه چې زه یې ولړزولم دزړه له کومې تا سو ته تسل وړاندې کوم ستا سواودستاسو کورنی لپاره اوږدعمر غوښتنه کوم او دهغه نا کامه ځوان روح له خدایه ښاد غواړم.

ستاسو په غم شریك

## گرانه دوسته

ستاسودمحترمې اوگرانی موردمړینی له کبله تاسوته تسلیت وایم او له لوی خدای نه ستاسو لپاره په دي دردونکي پیښې اومصیبت کې دزغم اوصبرهیله من یم.

ستاسودوست

## تسلیت

زما ......دردیدلی دوسته ستاسو د....دمړیني په خبریدوله حده ډیر خو اشینی شوم دزړه له کومې

ځان په دی ستر غم کی شریك کنم .که څه هم ددی غم تحمل ستاسود احساس زړه اوروح له توانه وتلی خبره ده ولی هیله من یم چې دهغه دهغیدروح ښادی لپاره له صبر اوزغم نه کاروا خلو.زموږدتولوعمر بنسټ پراوبواوحباب ایښودل شویدي

اوپرته لدي،دردونکي لاری تیریدل اوددی بی مزی شربت څښلو دتیښتی کومه بله لارنه لرو.
ستادوست

## غمیدلی دوست

ستادنا کامه وروز مړینه زمازړه پریشانه اوزموږ کوریی غمجن کړیده زماغم اودرد تولو پا تی کسانو ته ورسوه اوله خدایه تا ته او دکورنی تولو غړیو ته دجمیل صبر غوښتنه کوم.
لاسلیك

## مهربانه دوسته

وامی وریده چی ستا سو په کور کی یوه شمعه تپه اوینو ه غنچه ترغوړیدومخکی ورژیده .
ددی نازولی اولاد داغ که څه هم زړه ما تو نکی‌اوطا قت وړونکی دي .ولي هیله من یم چی په صبر اوزغم تاب راوړی .غمیدلی مورته یی هغه زما له خوانه ته سلا ورکړه زه له دی مصیبته ډیر خواشینی یم تا او محترمي ورینداری ته می دزړه تسل غواړم
غمشریك دوست دی

## دوست ته تسلي ورکول (دفاتحی اعلان)

په ډیرخواشینی‌دښاغلی ......دمړینی خبر دوستانو ته رسوم.دنوموړی‌مرحوم فاتحه د دوستانو اوکورنی غړی له خواپه........ورځ دماسپښین له....بجونه تر.....بجوپوري

په ........جومات کا اخستله کېږي .دوستا نو ته پدی توګه خبرورکړی شو.

ښا غلی

په ډیری خواشیني سره دمېرمن..... دمړینی تسلیت تا سو او پاتی‌کسانو ته یی وړاندی‌کوم.

لاسلیك.............

بله نمونه

ددرنی او محترمی کو رنی‌په رسیدلی مصیبت او غم کی ځان شریك ګنم او دهغه مشرستر ي کورنی ته له خدایه دعمراوږد والی او عزت غوښتنه کوم

لاسلیك

## بله نمونه

دګران پلار دنا ببره مړ ینی خبر په اوریدو ډیر خواشینی تا سو اونورو اړوندوته له خدایه داوږ دعمر او سوکا له ژوند غو ښتونکی یم.

## بله نمونه

په ډیری‌خواشینی او تاسف ستا سوپه ګر انی مور دمړینی له کبله تاسوته تسلیت وړاندی‌کوم
تا سوعالی جناب او دهغی خدای بخښلی ټولواړوند کسانو ته له خدایه دعمراوږ د والی غواړم .

لاسلیك

# مبارکیو ته ځواب

ګران دوسته
دډیرمنلی منلی مشردمینی له څرګند ونی ډیره ډیره مننه .ستا
سو ارادتوال هم نوی کال تاسواوستاسو محترمی کورنی ته دزړه
له کومی مبارك وایم . دهغی درنی کورنی روغتیا اونیکمرغی
له څښتن تعالی نه غواړم

ستاسودوست.........

دهغه دوست دمینی اولطف څرګند ونی نه یوه نړی مننه اوخو
ښی . زه هم پخپل وارهغه مشر ته دمبارکی او سو کا لی عرض
وړاندکوم هیله من یم له خپلي پتمنی کورنی سره تل ښاداوسی
دمنلي مشرله مینی اولطف نه خو ښی او مننه څرګندو م.
دهغه زړه سوانده دوست دښه نیت او مهربانی نه ډیره مننه زه
هم پخپل وارتا سوته پخپلو کا رونو او هدف ته درسیدولپاره له
خدایه بریالیتوب غواړم.
دهغه مهربان لیك د ... دمبارك په اړوند ورسید اودهغه ښا
غلی دمینی څرګندونه زما دډیر ویاړتو منه ده .همیشه خوښی او
سرلوړی مو له خدایه هیله کوم
دنوروزدمبارکی کارت چی دهغه مشردولطف او مینی
ښکارندوی دی ډیره یي خوښ او سرلوړی کړم ستاسواوټولي
کورني روغتیا په دي نوی کال کی له پاك خدایه غواړم
لاسلیك...

## بلنه

دپیغلی .......واده له ښاغلی........دخوښی مبارک جشن په نیولوستا سو حضر ته اطلاع درکړشو هیله ده پخپل راتګ موږ ته ویاړ په برخه کړی.

نیټه... کال... میاشت له ....بجونه تو....بجوپوری ...پته ...واټ ...نمره

لاسلیك..

## ګراني خوري

ځر نګه چې سبا شپه زمونږ دکوچنی لورکلیزه ده ماوښځی می پدي منا سبت یو کوچنی محفل جوړ کړی دی چی دنوروځینی نژدی دوستانوګډون به هغه موږ ته ویاړ راپه برخه کړی.هیله ده په نیکمرغه راتګ مودي محفل ته ځا نګړی روښنایی وبخښی.

ستاســــــو ورور

## میلمستیاته بلنه

ددرناوی په وړاندی کولو ښاغلی .... اومحترمی ښځی نه یي هیله کیږ ی...په ورځ په ...بجوپه خپل راتګ زمونږ ما ښامنی ته خاصه مزه او مونږ ته ویاړ وبخښی.

لاسلیك....

## دلیدنی محفل ته بلنه

ګران مشره. . .څرنګه چی د . . .په ورځ له. . .بجو نه دښاغلی راتګ له. . .یوشمیر دوستان په خپل راتګ ماته ویاړرا په برخه کوی .

له ګران اومنلی مشر هم په ډیر احترام او در نا وی هیله کېږی

• چی پخپل راتګ زمونږدخوښی ناستی درنښت او خوښی لاډیر کړی.

ستاسو مخلص. . .

## دبلنی منلوځواب

په ډیره خوښی ستا سو مسیلمستیا ومنل شوه په ټاکلی وخت کی به سلام ته درورسیږم.

له بلنی نه معذرت غوښتنی ځواب

سره ددی چی دسرلوړی ځای وچی د ښاغلی . . .دخوښی په محفل کی مي ګډون کولای .مګرمخکینی وعدی له مخی چی دکورنی دیو غړی لخوا سره شویده زما معذرت اوغوښتنه به ومنی . دټولودوستانو سوکالي او ښادی غوښتونکی یم.

ستاسو دوست. . . .

# بېلابېل اعلانونه

## دکارلټونکی

یو ډیپلوم لرونکی ځوان چې د دفترداری په چارو کې ښه بلد دی اوهم په انګلیسي ژبه اوفارسي او لاتین په تایپ ښه پوهیږي دکارپه لټه کې دی غوښتونکی کولای شي د ...نمبرتلیفون سره اړیکه ټینګه کړي.

لاسلیك

## په کرایه ورکول

یو شپږکوټي لرونکی کور لـه برېښنا اوبواوتلیفون سره چې په ...واټ... کوڅه کې پروت دی په کرایه ورکول کیږي غوښتونکی دهرډول معلوماتوحاصلولوپاره دی ... پتې ته مراجعه وکړي.

لاسلیك...

## ورك شوی

ما ...خپل لاسي بکس چې دبیلابیلو سندونو لرونکی و د ...په واټ کې ورك کړی موندونکی کولای شي دغې... پتې ته نوموړی بکس وسپاري اوخپله خوښه دی ترلاسه کړي.

لاسلیك...

## دروغتیاد... برخې اعلان

پدې توګه ټولوته خبر تیاده چې دتیرواعلانونوپه اړوند څنګه چې ځینې کسان دروغتیا او درمل اودرماني وسایلودنشتوالي له امله شکایت لري.بنائي ټول جریان په نیغه توګه دټولو بشپړومشخصاتو سره ددې برخې تفتیش ته وسپاري.

د.... برخې دروغتیا تفتیش رئیس

### اعلان

یوازې تر... نیټې پورې وخت لرې چې د... میلون افغانیوجایزې نه ګټه واخلې له دې ډیربنه چانس نه که غواړې ګټه موپه برخه شې ډیرژر یوه اندازه ډیرې لږې پیسې دخپل اوخپلوماشومانوپه نوم دبانګ یوې نژدې شعبې(برخې)کې تحویل اوبانکې حساب پرانیزې چې دخپل او یا خپلو بچیانوبرخلیك ته له... میلون افغانیو سره غوټه ورکړې.

### دغاښ علاج کلنیك

دغاښ جوړولوپه مدرنو ماشین الاتو اوهم مدرن جت تودبین او دماهروډاکترانولرونکې.

دخدمت وخت:دسهارله مخې په ازاده:تر ماسپښین وروسته بنائي وخت مخکې وټاکل شي.

پته... واټ... کوڅه... نمره اپارتمان

## دمناقصې اعلان

د... وزارت اداري ریاست دخپل ضرورت وړ څلورسووتنو سپین کاغذچې پریړوالی ئي... وی غو اړي په مناقصه وپیري دمناقصې ګډونکونکي کولای شي دشرطنامې پاڼه ولولي د... په ورځ په ... بجوعمومي اداري... ته دي خپل غوښتنلیکونه وسپاري.

رسیدلي وړاندیزونه په ... ورځ په ... بجو دمناقصې کمیسون په وړاندې خلاص او لوستل کیږي دوړاندیزوړکونکي اویا استازي کولای شي دمناقص په جلسه کې ګډون وکړي او کمیسون دیوی او یا ټولووړاندیزوپه منلواونه منلو کې واکمن دی. داداري ریاست رئیس

## قراردادونه

داجاري پاڼه

اجاره ورکونکی :ښاغلی... د ... زوی دتذ کرې ... نمره لرونکی د ... اوسیدونکی .

اجاره اخیستونکی :ښاغلی ... د ... زوی دتذکرې ... نمره لرونکی د ... اوسیدونکی.

داجاري موده له ... نیټې تر... نیټې پورې.

## شرایط:

۱-که دکورورانی دباران واوری له امله وی بیا جوړول ئي په کرایه نیونکی پوری اړه لری ولی دبرښنا اواوبونل چاری ئي دکور څښتن پوری.

۲-که چیری اجاره اخیستونکی دکرایه نیونکی له ټاکلی وعدی‌نه لس ورځی وروسته کرایه ورنکړی باید کور خوشی کړی.

داداجاری‌پانه په ددونسخو کی دواړه خواوته دبناغلی ... په حضورورکړه شو.

داجاره ورکونکی او اجاره اخیستونکی لاسلیک

## وکالت نامه

زه ... د ...زوی د ... نمره تذکره لرونکی‌د ... ځای‌اوسیدونکی ښاغلی ... د ... زوی د ... نمره تذکره لرونکی د ... ځای‌اوسیدونکی

ته می وکالت ورکړوجی دحقوقی تولو موادونه په ګتی اخستلواودوکیل نیول اونورزماپوردچی ... افغانی‌کیږی له ښاغلی ... د ... زوی نه تر لاسه کړی ماته رسیږی.

دموکل لاسلیک

## بیلابیل مکتوبونه

### شکایت لیك

د ... حوزی پولیسو محترم ریاست :

دسلام په وړاندی کولو سره عرض کیږی چی ... دځوکلونو را هیسی ... افغانی می پورورړی دی خلاصولو ته ئي زړه نه کیږی زما دمدعا دریبنتینوالی لپاره هیله من یم یو سپاهی واستوی او ځیرنه پیل کړی ستاسونه ډیره مننه

لاسلیك

### تعهدلیك

## د ... روغتون محترم ریاست

۱

زه ... د ... نمره تذکری لرونکی چی‌دنده می دا ... ده او دسږی له رنځه ځوریدلی ددومیاشتو راپدی خوا پدی روغتون کی بستری یم پخپله خوښه عملیاتوته چمتویم که له کومی ناوړی پیښی سره مخ شوم بل هیڅوك به پړنه وی .

په درناوی

**ضمانت لیک**

ښاغلی... د ... فابریکې رئیس صاحب(مشر) ته څرنګه چې ښاغلی ... دخپل پور له ورکړې سرغړوی‌زه ... دهمدې سند په واسطه ضمانت کوم چې دهغه پورپر ته له کوم ځنډه په تاکلې نیټه کې تاسوته دروسپارم.

تاسو ته بریا لیتوب غوارم

**تصدیق لیک**

ښاغلی ... چې په خپل کارکې د ... مودې نه راپدې خوا دډیرزیاراوصداقت له امله کوم نوښت ترسره کړی له ... نیټې نه ئي په میاشتنې معاش کې ... افغانۍ ډیروالی منل شویدی.

ښائي پخپله چاروکې لاهم نووښتګر ګامونه پورته او زموږ دادډ منتیا ډیره کړي. دموسسي رئیس

**بخښنې لیک**

زه ... د... نمره ټګکرې لرونکې دوارث نه لرلوله امله دغې موسسې اویا دغه ... فابریکې ته دخپلو تولو شتو چې سندونه ئي ... دادی تول حقوقي واك سپارم چې یوازې او یوازې زما دتکفین او تدفین لګښت په غاړه واخلي نورنو په خپله خوښه دی چې څنګه او کومه لاره ئي لګوي.

لاسلیك.......

## ډاکټر ته لیک

ښاغلی ډاکتر صیب ته!

ستاسو له مهربانیونه ډیره مننه باید عرض وکړم چې سرخوږي مې ډیر څه ښه شوي ولی تبه مې تېته شوې نده ستاسو د توصیې سره سم پیچکاري او ګولي ګاني کارول شوي او پای ته رسیدلي پخواني نسخه مې د همدې لیک سره جوخته ستاسو مبارک حضور ته وړاندې کړه وستاسو هدایت ته سترګې په لاره یم او یا لطفا که وخت ولرې په تشریف راوړلو موږ ته ویاړ او سرلوړي وبخښې.

لاسلیک

## رضایت لیک

اوس چې ښاغلی... د ... په مناسبت د محاسبی له دندې یې استعفا کړې ده پدې توګه تائید یږي او دیادوني وړ دی چې د نوموړي د ښو خدمتونو او ښه سلوک له امله د اموسسه خپله خوښي او رضایت رسما څرګندوي

لاسلیک

## خدای پاماني

ګران دوست ... څرنګه چې خبریاست محترم پلار مې له څو مودی راپدې خوا په یوبل ښار کې د ماموریت ترسره کولو لپاره رهی دی اوزه هم له پرته له کومې چاری ښائي له پلار سره ګډ له هغو سره وخوزیږم.

البته زمازړه هیڅکله نه غوښت له تا سو پشانی یودوست نه جلاشوم بله لاره نشته اوان ددیوخت می‌هم نه درلودچی یوله بله دخدای‌پامانی هم وکړو له دوست نه می‌هیله من یم چی زما معذرت ومنی‌اوهیڅکله می‌هیرنکړی.

ستا دوست

**خرڅلاو**

یـــــــــــــــــــودوه

پوړیزکورچی‌دپنځوکوټو.پخلنځی‌اوبوږحمام(سونا)ګراج.بریښنا ۳۲۰متره حویلی‌اوونی‌لرونکی‌باغچی لرونکی دی او په ... واټ... کوڅی ... ګنی کی‌پروت دی‌ډیربیرنی‌مسافرت له امله دمخامخ مزایدی‌خرڅلاوته چمتودی.
غوښتونکی‌د... په ورځ په ... بجو نوموړی‌ځای‌ته مراجعه وکړی.

لاسلیک

**دانشاء تعریف**

... دپوهانوپه اصطلاح دخوږوعبارتونواومالګینوجملوپه وسله دمرامونو څرګندول دی چی دمقابل لوری خوادلیکنی‌خوږوته واړوی اودلیکونکی په غوښتنه پوه شی.
انشا دزمان اوژبی تابع ده لکه څنګه چی پخوازمانو کی‌که چا په انشاکی ډیر عربی لغات راوړل او مغلقه لیکنه ئي کوله دپوهانو په نظردامتیازخښتن ولکه ... دره نادری دفرهادمرزا.
انشاء اونور اوباالعکس اوسنی انشا چی هر څومره لنډه اوپه خپله ژبه کی وی دپام وړده

## دليک ليکلو لپاره څو لار ښوونې:

۱-دتل لپاره دمقابل لوری استعداد په پام کې نيولو سره دهغه دپوهې اوعلم په سويه ورته وليکئ.
۲-ترهغه ځايه چې مقدوره وی ليکنه لنډه وليکئ خو دهغو موضوعاتو په اړوند چې روښانولوته ئي تشريح په کار ده دمقابل علاقه په پام کې ونيسئ.
۳-دمبهمو کلماتو راوړلو او هغه لغاتو دليکلو نه چې متضادی ماناګانې ولری ډډه وشي.
۴-دخطابولوله تکراراومتشابه لغاتو اونامناسبو جملو نه ځان وساتئ.
۵-له سوګند ،اغراق او دعاجزی له ښکندونې خوندی اوسئ.

## څنګه کيدای شي ليکوال شو

دليکوالي لومړنی پانګه قريحه اوذوق ګڼل کيږي قريحه يو ښپږم حس اوهغه فوق العاده ځواك نه دی چې ځينې ئي لرونکي او ځينې په کلي توګه ورنه بې برخې وی.
بلکې د ليکوالې په برخې کې دتمرين اومشق په وسيله دذهنې ځواکونو دعادت کيدو اومرستې نه عبارت دی .

ځنګه چې ټول بشري افراد دذهني ځواك په لرلوكې لږاوډير سره مساوي دي ويلاي شو دليكوالي قريحه لري اودا چې ليكوالي قريحه غواړي اوقريحه يوذاتي او فطري امر دي اواكتسابي ندي دمنلو وړنه شي كيداي دليكوالي قريحه هر څوك لري اوپه ډير تمرين او سم روش هرڅوك كولاي شي ليكوال دقلم توان ومومي ليكوالي يو ډول خبري كول دي چې رنګ وركړشوي اويوازي لږه حوصله ظرا فت او دقت غواړي .

بايد سمه لاره وټاكله شي دنورواثار په څير تياولوستل شي ويره او بې زړه توب پريښودل شي .

بروخوشه جين باش سعدي صفت كه ګرداوري خرمن معرفت

څه سعدي پشاني وړيټولوه چې دي ټول كه پوهي‌درمن جوړوه ليكونكې ته ښائي ډير څير وي كه پر ته له څيرتيا پركوم كار لاس پوري كړي صفائي او رونق به ونه لزي ليكونكي ته ښائي په ساده ليكنې عادت وكړي ليكونكې دنده لري چې دليكلوپه وخت كې خپل پنځه ګوني احساسات يعني :ذكاوت ،حافظه،ښكلا ،خيال اوذوق په كار واچوي .

## دمعاصروليكوالو دانشاكانو څونموني

بني ادم اعضاى يكديګراند كه در افرينش زيك جوهراند

چو عضوى بدراورد روزګار ديګرعضوها را نماند قرار

بنیادم دی یوله بله سره غړی مرغلری تار دوینوکی پیپلی
که کوم غړی په درداولی روزګار پاتی نه به شی نور غړی په کرار
که زموږدبدن له غړویونه یو غړی لکه دغابښونونه یو غابښ په
درد شی‌ارامی له لاسه ورکوو.
داسی احساس کووچی زموږ ټول وجود له سره نیولی تر
پښوپوری‌دردیږی داددی لپاره ده چی غابښ درګونو او عصابوپه
وسیله دبدن ټولو برخو پوری تړاولری اوله همدی مخی دردیی
ټول وجود ته لار باسی کله چی دغابښ دردتپ شی داسی
احساسووچی زموږ ټول وجودله درده خلاص دی.
بشری وړی اوغتی ټولنی هم دوړو اوغټوجسمونو پشانی دی او
انسانی افرادهم دهغه ی بیلی اجزاوی جوړوی.
ښه، اوس چی وپوهیدو چی موږیوله بله بیل وجود نه بلکی په
کل کی‌ګډ یو جزیونو ښا ئي چی دخپلو ټولو همنوعانو دردخپل
درد او خوښی یي هم خپله خوښی وګڼو.
دنړی ټو مختلف دینونه په دی برخه کی سره متفق القول دی
اووایی‌چی تر وسی پوری‌دی باید له لویدلواواسکیرلونه لاس
نیوی وشی او دهغوی په بي شمیرو دردونواوتپونو ملهم کیږدو.
هو فقیران او اسکیرلی بدایان بیماران او غبنتلی روغان ټول
لکه دپخوانیوزړوښاخونو په شان دی چی له یوی واحدی ونی نه
سره بیل شوی وی.

پدې صورت کې نه ښائي چې دبې وزلې له درده بې پروا پاتې شو بلکې بايده دې هغوې خپل وګڼو او په ډيرې مهربانۍ ورسره مرسته وکړو او که دمالي له پلوه ستونزه ولري ستونزه ئي ورته حل کړو او که ناروغ وي دعلاج لپاره يې هڅه وکړو او که چيرې په کارکې بله کومه ستونزه وي دحل لارې چارې ولټوو داچې وايي هريو دې خپله خولې په سرکې تينګه کړي چې بادېي يونه سي پوچه او بې بنسټه خبره ده اخر داروغ رمټ بډاې څنګه کيداې شي دخپلو همنوعانو له درده غافل پاتې شي ؟

که يو ميږې دښنولاندې اولړنارامه شي وبه وينې چې نور ميږې ژرترژره مرستې ته راځي.او هغه له ځانه سره خپلې سوړې ته وړي‌ايا دامو ږانسانان چې ځان ته اشرف المخلوقات وايو له ميږيونه ډير کم يو؟

ايا ددې نا څيز وحشرودمرستې حس زموږنه ډيرپياوړې دې؟

حتی دخيرات په ورکولوهم چې دخپلې روغتيا او شته لپاره وي ښايي له اسکيرلوسره مرسته وشي دهر سړي له دندونه يو هم داده چې دتولو افرادو له حاله دې خبروې.که ټول وګړي داوليا وپند او نصيحتونواودسعدي پارسي ژبې حکيم شاعرنصيحتونو ته غوږ شوې واې نه يوازې دا چې به فقر او بدمرغې ددې پراخې نړۍ نه ورکيده بلکې نړۍ نه به جنت جوړيده ډيرافسوس داچې داټکې دخودخواه او پرځان مينو افرادو سره په دې زمانې کې څه ارزښت نه لري.

# دخبرې کولو اداب

دادې دخبرې کولو اداب:
سړی باید ډیرې خبرې ونکړي او پخپلو خبرو دبل خبرې پرې نکړي او که څوك کومه کیسه اویاروایت وړاندې کوي اودې تر خبر وي خپله خبرتیا دې نه څرګندوي څو چې نوموړې سړی خپله خبره خلاصه نکړي او پرته له هغه څه چې ورنه څوك ونه پوښتي ځواب دې نه وائي او که کومه پوښتنه له کومې ډلې نه چې دې پخپله هم پکې شامل دې ترنور ودې مخکې نه شي.
که چیرې کوم څوك په ځواب ورکولو کې بوخت وي اوهغه تر دې ښه ځواب ورکولای شي دهغه دخبرو تر خلاصیدو دې صبر وکړي او بیا دې خپل ځواب داسې شانې ووائي چې پخوانی ته پیغورونه برېښنې او په هغو محاوراتو کې چې دهغه تر مخ ددووکسانو ترمنځه کیږي په سوچ کې ډوب نه شي اوکه له هغه ئې پټوي داوریدو په لټه دې نه شي تر څو چې هغوی ده ته ځان سره ګډون ورنکړي مداخله دې ونکړي اوله لاندنیوسره دې په کنایه ونه غږیږي غږ نه پورته نه ټیټ بلکې منځوی حالت باید ولري.
که په خبرو کې بله کومه غامضه معنی راشي دڅرګند ومثالونو په لټه کې دې شي اوکه نه نودلتهون لاره دې غوره کړي نه استعمالیدونکي نااشنا کنایي او الفاظ دې ونه کاروي.

کومه خبره چې ورته ویل کیږي تر خلاصیدو مخکې دې په ځواب ورکولو بوخت نه شي په تکرار ی توګه خبري ونکړ ی مګردا چې ورته سخت اړشي نارامي دې ونکړي او پخپلو خبرو کې دې ښکنځلو ته ځای ورنکړي او که چیري له خولې نه ئي خطاشوه دیوی توکې سره دې ورته وبولې اوپه هرې غونډي کې دې دغونډي روحیې سره سمې خبري وکړي .

دخبرو په وخت کې دې په لاس وسترګو او وریځو اشاره ونکړي مګر که چیري دکومې کیسې سره تړاولري په منلې بڼه دې هغه تر سره کړي.

دغونډي ګډون کونکو سره دې په ربښتیا او درواغو باندې شخړه ونکړي په تیره بیا له نا پوهانو او هغو سره چې بحث کول کومه سمه نتیجه نه ورکوي له هغه سره دې بحث ونکړي که چیري په مناظري کې مقابل لوري غښتلې وپخپله دې قضاوت وکړي دعوامو، لیونو، او ماشومانوله کرداره دې ځان وژغوري اوهغه څوك چې دخبرو په نزاکت اوباریکیو نه پوهیږي تاکید ته ضرورت نشته أو په محاوري کې دې مهرباني وساتي اوپخپلو حرکاتو افعالو او اقوالودې هیڅوك تهدید نکړي اوله بیځایوخبرو نه ئي مخنیوي غوره کړي .

له یو پوه یي وپوښتل چې ولې غوږ نیول دې له خبرونه ډیر دي؟ وي ویل داپه دې چې ماته یي دوه غوږونه اویوه ژبه راکړي یعنې داچې څه چې وایې دوچنده ئي واوره.

## دباران گټې

څرنګه چې لمر ځمکه روښانوي دځمکې اوبه په بخاراوړي او داسمان خواته ځي همداشان چې که چیرې یوه سړه لوښه دایشیدونکي اوبوپه سر کیدو همداچې داوبو بخار لوښي ته ورسیږي داوبو په بڼه اوړي همداراز داوبو کوم بخار چې دځمکې په سطحې کې راپیداکیږي کله چې په اسمان کې سړې هواته ورسیږي په اوبو تبدیلیږي او دباران په بڼه دځمکې پرمخ وریږي دغو څاڅکوته موږ باران وایو.

هر چیرې چې داوبو بخار ډیر وي باران ئي ډیردي په همدې مناسبت دوږوسیندونوپه غاړه اودسیندنو په ساحل کې باران ډیر وریږي کیدای شي چې داوبو بخار دبادونوپه وسیله له یوځایه وبل ځای ته ولیږدول شي په دې حالت کې په دې ځایونوکې هم ډیر باران وریږي ولی که غرونه دبادونودالوتخندوګرځي داوبوبخارپه هماغه ځای کې چې پیداشوی باران وروی.

باران ډیرې ګټې لري دباران ډیره ارزښتناکه ګټه داده چې اوبه مینځ ته راوړي اواوبه دانسان، څاروي ،اوبوټو، ژوند ته تردې حده لازمې بریښي که چیرې اوبه نه وي لدې موجوداتو نه یوهم ژوندی نه پاتې کیږي دا ځکه چې هیڅ شنه اوبو ټي پرته له اوبو نه شنه کیږي اوهیڅ کوم څاروی پرته له اوبو نه شي کولای ژوندی

پاتی شی او انسان هم چی دخارویوغوبنو او اوبوتهوته اړتیا لري پرته له اوبونه دژوند توان نه لري
سر بیره پردې چې اوبه دژوند یو موجوداتودژوند تومنه او د بنونو دتازه ګی وسیله ده نن په صنعت کی هم له اوبونه ډیره ګټه ترلاسه کیږي.
داوسپنی ځینی پتلی داوبو بخار په قوه حرکت کوی دډیر وماشینونو دکار لپاره اوبه په کارده او ستری کارخانی لکه بریښنا ،بوره،توکران اوبدلو اوداسی نوری اوبو ته ډیره اړتیالري.
اوبه دژوند لپاره لازمی ګڼله کیږی که چیری دځمکی په ژوروکی هم وی دهغی نه دکټی اخستلو لپاره ژوری څاګانی باسی اواوبه په پمپ څرخ اویا داسی نورو ورته شیانو په واسطه اوبه تری راکاږی.

## دعلم زده کړي نتیجه

اصمعی وویل :په هغوورځوکی چی ما زده کړی کاو او ددنیا په مال کی می برخه نه وه او په تنګسه کی می ژوند تیروه هر ګهیځ به می (صوفیانه ) جامی اغوستی او دعلم زده کړی لپاره له کوره وتم او په لارکی می یو فضول بقال ولیدچی له مانه یی وپوښتل چی :چیرته ځی؟ما به ویل دهغه محدث خواته ځم او په بیرته

راګرځیدو کی ئي هم هماغه پوښتنه کوله وبه مي ویل خپل روزګار ضایع کوی.
داغوندی کاغذونه راکړه چی خم کی ئي واچوم اوبه پری خوشی کړم په یوی اوونی به ټول اوبه ووینی او لدی کاغذونو نه تاته کومه ګټه نشته او پرله پسی توګه به یی پړوګنلم اوزه پری ډیر ځوریدم تر دی چی تنګسه وروستی حد ته ورسید او جامه می له اغوستلو ووته اونه می شوکولای هغه واغوندم.
یوه ورځ دکور وره ته ودریدم اوسوچ می کاوه چی یو خادم(خدمتګار)راغی وی‌ویل :امیرغوښتی ئي ومی ویل :هغه ماخه ماخه پیژنی زه یو فقیر او صوفی‌یم اوهم په دی شلیدلوجامو څنګه به دهغه تر څنګه ولاړشم.
خادم بیرته راوګرځیداوزما پریشانی ئي امیر ته څرګند کړی سمدلاسه ئي جامی ډول ډول عطرونه اوخواړه راوړل درپسیو یوه تړلی کڅوړه وردپاسه وی ویل:جامی واغونده اوراشه تاسره کوم کاردی.
ماجامی واغوستی اودامیر خدمت ته رهي شوم امیر زما سره ډیر ه مینه څرګنده کړه اووی‌ویل ته می دمحمدامین دخلیفه دزوی روزلوته غوښتی‌ئي چی دهغه څنګه ته ولاړشی‌او لاس په کار شی.
نوزه ئي بغدادامیرته راوړلم ما دخلافت دربار کی دهارون لاس ښکلولوویاړ وګټه :خلیفه وویل چی:اولاددزړه میوه او دځان ثمردی اوله ډیر ودعاګانووروسته ته می دزوی روزنی ته منلی ئي ښائي چی یوه شیبه هم پدی اړوند غفلت ونکړی او ښه ئي وروزی

او کوم څه چې دهغه دین ته تاوان رسوي ورزده نکړي چې یووختي دمومنانو امیر شي نو خدمت وکړي او مدرسې ته ئي بوتلم او محمد امین ئي راوستل اودبخښنې مراسم ئي ترسره کړاو ماته لدې بخښنو نه ډیر شته ترلاسه شول اودمیاشتي زردرم ئي راته معاش وټاکل اودامیرپه لنډخدمت کې مې ځای وموندلو هرڅه چې مې ترلاسه کیده بصرې ته مې واستوه چې راته سرایونه او کورونه ئي جوړکړل.

دڅوکلوپه تیریدومحمدامین دلوړلیا قت څښتن شواو ډهر ډول پوهې نه برخمن شو له ښاغلي امیرنه مې وغوښت چې خپل زوی وازمائي وروسته تر ازمایلوئي پرماباور ډیر شو وئي فرمایل:غوارم چې دجمعې په ورځې دی خطبه ووائي وي ویل دا کارمې ترسره کړي په لوړکچه ئي خطبه زده کړیده.

نودجمعې په ورځ دماښي جومات ته راغی او دخطابت شرط ئي پرځای کړ او بیا شاباسې ګانې وشوې او ماته لوروني نو بیا امیر وفرمایل چې:څه ارزولری ؟ومې ویل: دامیرله دولته خپلوارزوګانوته رسیدلې یم اوکه امیر اجازه راکړي ځورځې به بصرې ته ولاړشم او دښار خلك زما په حق کې دامیر له بخښنې خبردی دهغه لطف ډیرونو ماته ئي اجازه راکړه اودبصرې امیر ته ئي سپارښت وکړل چې :تول مخوردې داصمعې مخ ته راووځي اوله دخ نه دي دګتو اقتباس وکړي اوزه په ډیراحترم بصرې ته واستولم او پخپل پخواني کورکې میش شوم.

یوه ورځ هماغه فضول بقال له یوي ډلی سره ماته نژدی راغلل ځنګه چې می هغه ولیدومی‌ویل ای شیخه هغه کاغذ ونه مـی خم می ته واچول او به می پری توئي کوی ودی لید ځومره ښه وشو؟
بیوژلی په زاریو او توبوشو وی‌ویل :هغه چی می ویل له پوهی نه ویل او څرګنده شوه که زده کړه ګټه ورکړی امادا دنیا او عقبا له ګټی نه به تشه نه وی.

## خیر غوښتنه

یوازی خوښ او مهربانه اوسی. ګاونډی ته خپل لاس د مرستی لپاره وغځوی اوهغه سره دمرستی ترسره کولو په وخت کی مو سکاشی خپله رڼا لکه دلمر پشانی خوره کړی اوزیاروباسی چی خوښ اوسی او په ضمن کي دنورو دخوښی سبب هم شی دادخیر غوښتنی نښی دی.
وګوری چی په نړی کی مهربان او خیر غوښتونکی اشخاص دخه اخلاقی څرګندونی لرونکی دی.
خیر غوښتنه د مادی او پولی له پلوه یو ډیر ارزانه څیز دی ولی په خپل ماهیت کی د بشری سعادت او خپلی خوښی په نسبت د عالم له ټولو مواهبونه لوړ تیا لری او ځینی کسان خپله خیر غوښتنه نه څرګندوی.
کله چی پریوواټ باندی چکر وهي او یو کوچنی خوړ ماشوم نازوی له شاو خوانه تاسوته ګوری اودهغوی د اریانتیا سبب ګرځی . نننی وګړی ځینی پرځان مین او ځان ته اسیرپاتی چی

پرته له پیسو پربل څه سوچ نه کوي او د هغوی زړونه لکه لـم یزرع ځمکی فاسد اود میني . سولی، پخلا ینی او محبت نه بی برخی دی. په داسی محیط کی کله چی تاسی په غوړیدلی ځیره ګام ږدی او خپل شاو خواته په خوښی او اهمیت وړنظر اچوی اوځیر کیږی ددی پشانی دی چی تاسی ددنیا څښتن او ددی کسانو چی پرته له شتو تولولو په بل سوچ کی نه دی د اریانتیا وړ شی.

کله چی له بیوزلو اونا امیدو کسانو سره مخامخ کیږی د خپل موقعیت د لاپراختیا لپاره هغوی وهڅوی او له هریوه سره ښه کړه وکړی څوچی خپل ځای ته رسیږی تاسی خپله ونډه د بشری عالم په روښانولو کی او د هغوی د ولو په سپکو لوکی له هغو با رونو نه چی پری درنښت کوی ترسره کړیده.

بنی ادم اعضای یکدیگراند
که در افرینش زیك ګوهر اند

انسان همدا د دووښو موجود لکه دنورو ځانورانوخوری،ویدیږی د خوړوترلاسه کولو اوطبیعی غریزود ارضاپسی منډی وهی دخیر تر لاسه کولو او شرشړ لو لپاره هڅه کوی . بی اختیاره دنیا ته راځی او وروسته له څو مودی ځی او لدی پلوه له نور و ځارویو سره دومره تو پیرنه لری.

هوښیاری. ذکاوت د تفکر او تصمیم ځواك هغه یی له نورو څناورانو ممتاز او متمایز کړی او هغه فضیلت چی هغه نه د

مخلوقاتو اشرف جوړوي بـل شي دي دادهغـه رواني جنبـه اوحس دي .

همداد هغه رواني جنبه ده چې كه هغه دخپل حيواني خويونو لكـه پرغز(قهر)، غضب ،تمه ، كبر ، غرور ځان غوښتنه ،ګټه غوښتنـه او داسې نورشيان هغـه لـه دننه ځنې څوروي او پـه ارامـه يـې نـه پرېږدي.

دا ډېر منلي ځواك دي چې د انسان دندي ورته تلقينوي. هغه د پرمختك په لوري رهبري كوي او د هغه په يادوي چې دخپلو هو سونو مخه دي ونيسي .دځارويوخويونه دې له ځانه لرې كړي څو هغه مقام ته چې د هغه له شا نه سره ښايي يعني انساني مقام ته ورسيږي.

انسان .متمدن ننني انسان ددې تولو پرمختګو نو سره يې چې د پوهې اوهنر په برخي كې كړي هغه انسان چې د طبعيت ځواك يـې مهاركړې له يوې خوا دسيندونو په ژوروكي لاره موندلې اوله بلې خواپه لايتناهي فضاكې يې ځان ته دلا نفوذ زمينه برابره كړيده .

په علم و صنعت كې يې تر دې كچې پرمختك كـړي چې دذراتـو زره يې چوولي او دهغه دچوولو لـه قدرتـه دخپلې فرمـانروايي لپاره ګټه تر لاسه كوي . لدې تولې ځواكمنې او زور سره يې ا يا خپل انساني مقام يې تر لاسه كړي او بشپړ ګڼل كيداى شي ؟ ښايي وويل شي يه .

داپدی چی بشر دپوهی اوهنر لدی دومره پرمختگونو او ځواك اوتوانایی سره ونه شوکړی دژوند له ستونزونه یوه ستونزه حل کړی او دجهان د خلکو د وروسته پاتی والی یوه غوټه و پرانیزی. بلکی نړی که ځومره پرمخ ځی علوم او فنون په هماغه نسبت پر مختگ کوی ، ویره او وحشت د یریږی د ژوند ستونزی لا ډیریږی دا ولی؟ دا پردی چی بشر لاتراوسه پخپلو انسانی دندو پوهیدلای ندی اوکه پوهیدلای هم هغه یی سم کارولی نه دی .

انسان کله چی د طبعیت دستگاه لدی تولو وسایلو سره په نظم او بشپړ انضباط کی وینی تول طبیعی عوامل پرته له لږی دریدنی اوډیری لږی بی نظمی نه خپل پراوته ادامه ورکوی، ورځ په شپه او شپه په ورځ اوړی پسرلی،اوړی،دوبی، ژمی هریو پخپل وار راځی اوځی بیواکه د هغه دهستوگنی په لټه کی شی داستر جوړونکی چی دا دستگاه یی جوړه کړی اوداسی ستر ځواك یی کارولی په ثنا باندی ژبه خلاصوی او دهماغه روانی ځواك له امله چی په دننه کی لری پدی سوچ کی شی چی مسلما ددی دستگاه په کار اچولو او ددی قدرت په کارولوکی کوم منظور پروت اوکومه غوښتنه باید په مینځکی وی او دا انسانی لومړنی ونډه ده چی په هغی نړی کی چی ژوند کوی دهغی هستوونکی باید وپیژنی او په هغه منظورباندی چی دامنظمه دستگاه جوړه شویده پوه شی .

بشر، همدا ځواکمن بشر چی طبعیی قوه یی ځان ته راپارولی ده غواړی ځان لاغښتلی کړی ځان ته دراحت وسایل جوړکړی

اوددی وسایلو تر لاسه کولو لپاره ځان هری خواته په اوراوبو کی وهي او په پای کی ځان دزړه ارمان ته رسوی. پخپل خیال چی هر څه لري او کولای شی په ارامی ساه و کاږی او څو ورځی په راحت او سوکالی کی تیری کړی. ولی وینی چی زړه یی لاارام نه نیسی او داسی ښکاری چی بیا هم څه تشویش لري.

په سوچ کی شی. د نارامی علت په لټه کی شی له خپل دننی نه یو غږ اوري غوږ شی دا غږ ډیر ښه تر غوږکیږی چی هو زیار دی وایست د سوکالی وسیلی دی برابری کړی اوس کولای شی ډیر ښه ویده شی و لی ته د نورو ځناورانو له ډلی یی که چیری خپل د نفس غوښتنی دی ترسره کړی بله غوسه اوغم نه لری ته انسان یی تر هر څه او هرکار نه ډیر ښایی د خپلی انسانی دندی لپاره راپاڅي.

مګر نه وینی چی ستاله همنوعانو نه داسی کسان شته دی‌چی نه شی‌کولای په مړه خیټه وخوری اویادخپل او یا دخپلو وړوکوچنیانو د ژوند احتیاج پوره کړی، مګرد درد مندانو ژګیروی ، دبیوزلو ناری او د مظلومانو غږ ناوری ایا کولای شی تر دی مخکی چی له هغوی نه درد و غم لری کړی سم ویده شی اوپرته لدی چی د نوروانسانانو حال ته پاملرنه وکړی سوکاله پاتی شی ؟ دا غږ د وجدان غږ دی. داهماغه انسانی حس دی چی نه پریږدی تاسی په ارامی کینی او د نورو له غمه ګوښی پاتی شی.

دلته ده چې انسان خپله دويمه انساني دنده راياد وي او پوهيږي چې تر هرڅه ړومبی انسان دی او ښايي كومه دنده چې لري ترسره يې كړي.

ښايي وي داسي كسان چې د تل لپاره خپله سوكالي او ارامي وغواړي او دنور په درد ونه درديږي.

دوے له دوه حاله بهر نه دي يا تردي خده خپلي نفساني هواكي ډوب شوي او په ماديا توكي غوپي خوړلي چې حيواني خويونه د هغوی پر انساني جنبو باندی تسلط موندلای او دانساني ښيری لرلو سره د انسانيت له نړی نه لري دي.

يا د غفلت مالوچ يې په غوږ كې منډلي او ځان يې دوجدان غږ اوريدلو نه راحت كړی دی ولي داراحت موقتي بريښنی په پاي كي به يې له عذابه خوندي پاتي نه شي.

حقيقي انسان . بشپړ انسان هغه دی چې ځان هيركړی او پخپلو ټولو زيارونو كي ټولنه او بشری عالم په نظر كي ولري. په كار او عمل كي د انسانانو سوكالي او ارامي وغواړي. هميشه دی ښه خوی ولري او د نو رو سره دی ښه وكړي او لدی ښه كو لو نه دی بل هيڅ منظور ونه لري نه د خير اميد او نه دويري او ډار اونه د څه ترلاسه كو لو لپاره اونه دا چې خلك ورته ښه ووايي او په ښه نو م دی ياد شي بلكي يوازی اويوازی د انسانيت لپاره دی نيكيوكړي دا هماغه دانسانيت بنسټ دی چې(مولاعلي كرم الله وجهه ) دے عالي مقام ته رسيدلي او فرمايلي دي: خدايا دا زه چې ستا پرستش كوم نه ستا د جنت په اميد اونه ستا

د دوزخ له ډاره بلکی ستا ذات می دستایلو او پرستش وړګڼلی هغه ستایم .
کله چی انسان د کمال درجی ته ورسید نو په هغه کی ځان غوښتنه ،سودغوښتنه . غرورنه لیدل کیږی . هغه ځان په ټولنی کی محوکوی او د زه او ته موضوع له مینځه ورکیږی. په هر کارکي د زه پر ځای موږ وایی او د شخصی ګټی پر ځای د ټولنی ګټه په نظر کی نیسی . هغه هیڅکله لوی خدای د طبعیت ستری دستګاه جوړونکی نه هیروی د علم وپوهی په زده کړه زبار باسی، خپل ټول مادی او معنوی توان د ځان او د بشری عالم همنوعانو د سوکالی په لارکی کاروی له بیوزلو سره مرسته کوی او دبیچاره ګانو لاس نیوی کوی .
له زوره خبری نه کوی او ظلم نه کوی .دباچا زورهم نه منی او دبل د ظلم لاندی هم نه ورځی .
زیار وباسو ځان د بشپړ انسان په بڼه کړو. اهغه ورځ به نړی اونړیوال د خوښی او سوکالی مخ ووینی.

واعظ پور

**د اوړی فصل تشریح کړی**

... ځیری سوزیدلی ساه ګانی تودی وچلی خولی څخوی. اسمان شین شو . رڼا خورونکی لمر هریخواته په رڼا خوروولو پیل وکړ تود اوله حرارته ډك وځلید.

سو زنده او وچ وځلید ، بارلرونکی ونی خپلی ژمنی میوی پر ځمکه توئی کړی .

اور رنګی سره ګلان لاسره شول . یا سمین خپلی وړمی وبل پسرلی ته وساته او تودوخی له مخه وتښتیدل . توتکی دونو پر ښاخونو کیناستی، او دشنو اسمانو نو پر لوری والوتی . په شپو ، شپو اسمان لـه ستورودك لکه یوه ښکلی ناوی د هغه په شنه رنګی مخ لکه یو سپین لوبی مین چی پر یوی کوچنی بیړی کښی په خوځیدو راغی اوری و، خلك د بامونو شا ته پناه وړی وو، دشپی له مخی به تر اسمان لاندی ویدیدل ، او کله چی به دګهیځ دریخه خلا صیدله بیرته به کوټی ته راګرځیدل ، دیخ ( کنګل ) جوړ ولو ما شینونه ورسره په حرکت راغلل او بازارکی د کنګل خرڅلاو رواج وموند ، دو بنی میوی ډیری شوی ګرمی وهلی چی به له لاری رسیدل ځانونه به یی کوهیوډنډونوته غورځول. دسیند غاړی تودی شوی ، غوړیدی ، دګرمی وهلو خلکو ګڼه ګوڼه هغه ځای هم ډك کړ . هلکانو به خپل ډول ډول باد اخیستونکی خیکونه اوبو ته غورځول او په خوشحالی به یی اوبو کی لمبل . ترڅو چی دوبی تیرشو ، بادونه والوتل ، یخنی پیل شوه دخپی په زړه کی یو توپان وپارید هغه یی لاندی باندی کړ وګړی کورونوته ولاړل کوټوته یی پناه یوړل خوبنی اوښادی یی

بـل دوبې تـه پریښودل او د راتلونکې پـه هیلـه لـه سړ وسـره پـه اخ وډب شول .

## پسرلی

زړه نړی له نوی وغوړیده ځوانه شوه ، شنه شوه دخلکوپه مینځ کی یی هیجان راوړه ونی غوټی شوی دویا لو پرغاړی شنه وټوکیدی ، ویالی و بهیدی هرځای کی شور او غوغا پیداشوه ،په بڼ کی بلبل د سره ګل پر ښاخ له زړه نغمه خوروله کنری ګانی دیخوا ، ایخوا الوتي او وزرونه پر انیستیباغچی له ګلانو ډکی شوی . نسترنونه ، یا سمنونه خپلو جنتی وږ موسره له هری څمکی او هر بڼ نه سر ښکاره کړل .
د سورګل غنچه زړه وړنه پیل کړه ، هغه بلبل ته یـی چی پـه فغـان راغلی و ناری کـړه نـازیی وپلوره اشاره یی‌وکړه،ځوچی یی‌خولـه خلاصه کړه ، خلاصه شوه.
لیونـی بلبـل پـه چیغـو شـو. لـه سـتر ګویـی اوښکـی تویـی کـړی، داځکه چـی هغـه دغفلت پـه خـوب تللی و کلـه چـی ګل غـوړیده ، هغه دشپی له پیله د هغی ګلپا ښی پښی ته چی لا غوړیـدلای نـه وه ناست و لـه سـترګی یـی وینـه بـهولی و امااقسـوس چـی د نـوی ښکلی ګل دغوړیدو پـه وخت کی هغـه ویده وه. ژونـد همداسـی دی څه کړی شو کله انسان تیروځی ولی دومره اسانه،نده بلبـل پـه هیڅ توګه ونه شو کړی چی خپله تیرونه جبران کړی.

# ځواني

ای دمینی او تقـوا، لیکونـو . زمـا ځوانـی تاسی یاست ؟ ستاسو خـوښی او مسـتی مامسـتوی. ستاسـو د اسـرارو لوستل زمالـه سترګی ځومره اوښکـی بـهولی وی اجـازه راکـړی چی یوازی یوه ورځ بله ستاسو د ځوانی دوری تـه وردننـه شم پریـږدی چی خپله ټوله پوهه او خوښی سره چی ماته یی نسبتوی پر هغو لـه خوښیو او ښادیو ډکو شیبو دویراوښکی تویي کړم.

اتلس کلن وم . د مینتوب د تخیلا تو او افکـار حدمـی نـه پیژنـد، او امیـد راتـه څه درواغجن زیری راکـوه . هغـه ستوری چی زمـا دعمر په اسمان کی ځلیدلی وه .هغه ماشوم چی نن له ټولی پوهی او تجربی سره می مخ له شرمه ورته شین دی.

ځوانـی د خـوب و خیـال .ځواك او زړه سـوی دوره نـړی مـی سپیڅلی او پاکه ګڼله .

نن هوښیـار . پوه او بینـا یم او تیر وتنـی او خطاکورتـه مـی لاره نشته.ولی هغه لـه تودوخی او امیـد ډکه ځوانی چی می نظر تـه توره تیـاره ښکـاریده لاهم ترسترګو مـی ځلیـږی او لاهـم د هغـه وخت ښادی او خوښی زما پناه ځای وه .

اے د ځوانی کلونو ما تاسو سره څه کـړی و چی لـه مانـه داسی ژر دومره لری وتښتیدی؟

ایا گومان کوی له تاسونه راضي یم چې بیاراشی او ځان ښودنه کوی؟ افسوس چې نه شي کولای مادخپلو وزرونو پرمخ ونیسي او د ځواني ښادي او خوښي فضاته یوسي.
افسوس چې دتیر روز گاراود میني اوغرورنه ډکوکلونو خیال پخپلوسپینوجاموکي چې د ځواني په احساساتو او افکار و ښکلي کړي شویدي دیوانسان له نظره تیریږي. بیواکه د هغو په وړاندي په گونډه وکیږي او د بیو سي اوښکي تویوي ،ولي افسوس چې هغو بیسارو ورځونه پرته له بیځایو مشوشو خیالونوبل څه ورته نه په بر خه کیږي.
دځواني ورځي مړي دي. ښایي هغوي هیري کړو پریږدوچي دنیستي سیلۍ هغوي د ژوند په تیاره افق کي وځپي. له موږه به څه یاد گار پاتي نه شي.
انسان پدي نړۍ کي لکه یوه سرگردانه شبح (دیو جسم توري چې له لري ښکاري) دي چې ددي لاري له تیریدو وروسته ان له ځانه سیوری هم په یاد گار نه پریږدي.

ویکتورهوگو

## کوهستان

اوس چې د ژوند له غږوغوږه تښتیدلای اودي ښکلو کوهستانو ته مي پناه راوړي ده خپل ځوریدلای روح ته مي ارامتیا او سپیڅلتیا ښنم اوداځمکه ښکلوم چې زما قدمونه پرخپل مهربان

ټټر مني. کله چې د غره له شنه لمنې نه ددرې او رودله ونو ډك غېږ ته ځغلم اودلویدیځ با دونوکوکارۍ د غره له پلنو او چوپو تیږ و او د ښاخونو او پاڼو له مینځه اورم ، هغه هیلې چې په مینه کې کنګل شوې بیواکه پدې ناپایه فضاکې ځغلوم .
زه پدې ښکلې کوهستان کې مې له ګرځیدلونه ډیر خوند اخلم ، داځکه چې د هغه په لټون کې مې دخپل د ژوند مراحل تیرکړي دي،اوس یې په دې دښتو او ځنګلو نو کې مو مم او ښایې د ځوانۍ ورکې شوې ورځې هم د مهربان طبعیت په غیږ کې ترلاسه کړم :
زه دایوازیتوب او چو پتیادژوندنه ډیر ښه فرصت ګڼم،ځکه چې د ځوانۍ دمینې خاطرې دبو ډایې دیوازیتوب او چوپتیا په سیوریو کې ډیرې ارزښتنا کې او خوږې دي ! غواړم د ژوند وروستی شیبې په دې ارامتیااوښادۍ کې تیرې کړم،ځکه زه پرته د بوډایی پیټې نه څه نور پر اوږ ونه لرم او زما لړزیدلې ګامونه دنړۍ په مهربانو خاوروکې د ژوند وروستۍ پړاویې وهلې دي په پای کې چې د ژوندانه اوهستۍ نه سترګې پټې کړم اودابدیت کورته پناه یوسم،دادبوډایی پیټې به هم پر ځمکه وغورځوم او پراخه اسمان ته به خپلواکه والوزم !

# سیند وستایی

چیرې هغه زړه چې دلمرنارنجي رڼاانعکاس دسیندپه شنه لمن کې دلمرلویدوپه وخت ووینی د خوښی له مینی ډک نه شي او ، ونه لړ زیږی ؟

هلته چې څپې زرې رنګه څوپوړیزې جامې پراوړو وړې هلته چې نسیم په ارامې سره د څپوله وچولې ښکلوی او څپې له خوښی خولی بهولی او د ساحل غیږ ی ته پناه وړی هلته چې سیند لکه د پاکې هنداري پشانی څلیږی او دخونړی شفق عکس چې اورنیولی مالو چوته ورته دی په ځان کې منعکسوی هلته چې دلمر وروستني پلوشې لکه دیو ماشوم پشانی سر دیو مهربانه پلار دڅپولمن کې ږدی هلته چې لمر له ورځنی هڅې ستړی او خونړی سر د سیند په او بو کې منډی او دڅپلو وینوله سور والی دسیند اوبه په ډیره ښکلیښه واړوی ایا د طبعیت ډیره طبیعی تابلو نده ؟

ایا دا بدیع اثر چې هیڅ یو ماهر انځور ګر دهغه په انځورولو قادر ندی د طبعیت له شهکارونو نه شمیرل کیږی

ایا طبعیت هرڅه یې په سیند کې خلاصه کړی نده

مینه ،رخه ، سپیڅلتیا ،پرغز ،کسات، پایښت او ښکلا.

څوك دی چې د سیند څپو طغیان دساحل د یوالونو ماتولو لپاره ووینی اوله غروره ډك نه شي او پند وانخلی ؟

وړی او ارامی ځپې چې د سیند په مینځ کې پرته له خوځولو او ښوئیدلو بل کوم کارنه لري دساحل د خنډونو ماتولو لپاره توفان پاروي ،چیغه کوي ، په بې پروایی ځان د ساحل پرډبره وهی یرغل کوي ، پر مخ ځی پر شا درومی ولی هیڅکله نه مایو سیږي.

موکې . دطبعیت ددې بچیانو په قاموس کې نا امید کوم مفهوم نه لري . بیا هم پرمخ ځي ځان پر ډبرو وهي هڅه کوي چې خوري وری نه شي .ولی نه مایوسه کیږي . تردې حده هڅه کوي چې د ژوند لپاره لاروموی .

ځپې په ډیره چټکتیا پرمخ ځي او هر څه چې په خپله لاره کې ويني له ځان سره یې وړی . دلته ده چې د تخیل قوه پاریږی . او وینبیږی.

ایا طبعیت زمونږ د تخیل قوی وینبولو پارولو او تحریکولو لپاره دا صحنه پیداکړی نده ؟

ایا دا زمونږ د ژوند لپاره سرمشق کیدای نه شي .

کله دسیند غوړیدلی وچولی دطبعیت دټولو ښکلاو منعکس کوونکی شي او کله داسی ګونځی پر مخ خو روی چې ان دهغه بچیان هم له نژدی کیدلونه یې ویره لري .

هیلی دا دسیند سپځیلی او په لار بچی چی هیڅکله د خپلی مورله غیږی نه بیلیږی .په سیندکی دنیا ته راځی په سیند کی روزل کیږی او دسیندپه لمن کی ژوند کوی او په سیند کی مری

او د شپو په غیږ کی دننه کیږ شی کله چی خپله مور قهر جنه وینی په چیغو چیغو الوزی او وریځو ته پناه وړی.
پناه وړی ترڅو دسیند له څیری نه د قهر ګونځی ورکی شی او سیند خپل پخوانی تازه ګی صفایی او سپیڅلتیا بیرته وموموی ترڅودا دهغه د سپینو خوځیدونکو ځپو پرسر ورو ورو و ښوئیږی کله هم سیند دوه زړه بایللی پر خپلی غیږ کی د اغیار و له نظره لری په خپل زړه پا لونکی غیږکی منی څو دهغه په مینی کی یوه ګړی سره مشغولا وکړی او د ځوانی د شرابو له نشی نه مست شی او هلته چی پر ته د سیند راز ساتونکی غوږ نه بل غوږ نشته سره د زړه خواله وکړی.
دلته سیندچوپ او ارام د ژوند دوونیا لګیو له معاشقی نه خوند اخلی او سپوږ می ته فرمان ورکوی چی د ژوند تاندو غنچو نه دی ساتنه وکړی او دهغوی سپڅلی محفل ته دی خپلی رڼا سره ښکلا وبښی. اما همدغه سیند چی په چوپتیا او ارامی دی صحنی ته یی سترګی ګنډلی کله چی ښکاریان د هغه د بچیانو غلا لپاره د هغه پر زړه پښنه ږدی او د بیړي له مینځه د کب نیولو توږ دهغه خواته ورګوزاروی په لوړی سرکی په ارامی او صبر دی منظری ته ګوری ښایی ښکاریان له هغه و شرمیږی او له بچیانو نه یی لاس واخلی.
ولی ښکاریان داد خاوری بیباکه بچیان پرته له لږ څه زړه سوی خپل دام د هغه پرسپیڅلی سینه خوروی هو په هماغی شیبی کی چی خپل دام بیرته راټولوی او په زرګونه د ځیکرتو نی یی په دام

کی نیولی بیاهم سیند چوپ دی او گوری چی د سیند بچیان چی د خپلی مور له غیږی جلا شوی دی اومرگ پخپل ځنگ کی وینی .
وینی چی تر مرگه پوری دومره ډیره فاصله نده پاتی او ډیر ژربه له مینځه لاړشی په بیتابی سره د خاوری د بچیانو په دام کی لاس او پښی وهی هڅه کوی .خپل سر په دام کی ټکوی له سروڅان یی وینه بهیږی او دسیند سینی کی توئیږی سیند له قهره لړزیږی مگر څوك کولای شی ووینی دبچیانو وینه یی د هغه د سترگو په وړاندی تویه کړی او هغه چوپ پاتی شی ؟
دلته ده چی سیند دتوفان قمچینه په غورځنگ راولی او دخاوری بیباکه بچیان د څپو غیږ ته سپاری او هغوی دام خوشی کوی دوتلو هڅه کوی ولی سیند چی دخپلو بچیانو وینه یی په خپله سینه کی لیدلی وه د خپلو بچیانو له وژونکو نه لاس ناخلی او ترڅو سزا ورنکړی نه ارامه کیږی.
سیند موږ ته دا ښیی چی د غلیم په وړاندی تیریدنه روا نده کله چی پخپلو پښو گورته راغی عفو او سترگه پټول بي ځایه ده ،دلته ده چی سیند د هغو عاشقانو صفا او مینی ښکارندوی دی چی د اغیارو له نظره د پټیدو لپاره له سپیڅلی روح اوزړه سره د سیند له مینی ډك زړه ته پناه راوړی.
هغوی ته دپرغزاو کسات ښکارندوی دی چی د بچیانو ښکار لپاره یی د هغه پر سینه پښه ړدی .
هلته چی د سیند پر شنه سینه او څپوکی یوه کشتی دخپل خور شوی باد بان سره لری ځنډو ته ښوئیږی او ورو ورو دسیند سینه

ځيرى او ماښامنى نسيم وينى اود اميد ترانى د نا ستو غوږ كى زمزمه كوى او د څپو څګ نيولى دلى ساحل ته د رسيدو لپاره له يو بله مخكى كيدوكى دى .
خورى وريځى د شنه اسمان افق پټوى او دهغوى سيورى په سيندكى د هغوى له خوځيدو سره پر مخ ځى . ډيرى غټى او وړے كشتى له لرى او نژدى تر سترګو كيږى او كشتى چلوونكى د خپلو چپو(پارو) سره داو به تېتر ځيرى او د اوبو زړه وړونكى او تودغږ دسيندله شانه ماتوى او د كشتى چلوونكو د ترانو زړه پالونكى اهنګ چى د هغوى د صادقانه احساساتو ښكار ندوى دى تر لرى برخو انګازى خوروى. داسى اوريدونكى نشته چى ددى روح پالونكى او ژونديو اهنګو نو له اوريدو چى د څپو له څګ لرونكى سينى خوښ او ښاد را خيږى ددى ترانو او سرودونو بل ويونكى پرته له سينده نشته لدى پلوه ده چى دا اهنګونه د سيند تر زړه پورى لار باسى .
سيند دومره ښكلى دى چى ( شعر) يا نثر ، يا ( موسيقى ) هيڅ يو هم په ځانګړى توګه د هغه په ستايلو قادر ندى . كه د ( ګوركى ) ستايل د ( بهتوون ) نبوغ اود ( لامارتين ) د تخيل قوه سره يو ځاى شوى واى كيداے شو ويلاى به مو واى چې د سيند ستاينه بشپړه شويده .
ولى افسوس ..................!!

نوح

## مني

دوبي پای ته ورسیده.پاڼي رژیدل پیل شو.مني را ورسید.ونې ژیړې شوې اولکه ناروغ پشاني په زګیرو یو شوې.ښاخونه تیټ شول.سر پر ځمکه کیښودل.خپلي پاڼي یې چې یو وختې لکه خپل خوږ ځان ساتل . له بدنه بیل کړل.د هغي ځمکې پر سر چې سړه وه او ختېنه لاتدې د منې باران نه رژولي وو.باد ولوله وکړه.خپل سرغړانده اس یې نعل کړ په ټولو ځایونو باندې په ډېره بیړه پریووت.تاند او نازك ښاخ یې مات نه کړ.زړوباندې یې چې درنه تنه یې لرل یرغل شواو ټکان یې ورکه ولي وې نه شو کړای له ځایه یې وخوځوی.لکه د تاند او نازك ښاخ یې مات نه شو کړای.څنګه چې هغوی استوار او پر ځای ټینګ و نه نا امیده کیدل.ځان ته یې زیرې ورکول چې ژر به دا تاړاك له مینځه ځي او پاړې مومې او هغوی به بیا پر ښو په سر لوړې او غوړید لاې تنه ځان څرګند کړي.

د لمر رنګ ژیړ او رڼایي لږه شوه.دو ښې تودوخه او سوزندوالی یې له لاسه ورکړه بې دمه شو. مات وګوډ پر غوړیدلي تیږې ځغلیده.لویده او کو کار یې کول.دمنې خزان وهلې پاڼو په مینځ کې ګډیده اولړلړ پټیده د هغو ښاخونو او پاڼو له شانه چې نور نوځوان نه وو او زړښت یې په تحرك کې نیولي و.تیریده او د ځمکې پر مخ چې له ژیړو وچو نارنجي پاڼونه پوښل شوې وه لویده.ټول ځایونه ژیړ ووټول ځایونه غم لرلي وو داسې سوچ وکړه چې د ماتم او غم دوره یې پر ټولې نړۍ شیندلاې ده.ولي دا د منې

نه شکایت په هیڅ بل کوم فصل کې پروت ندی، په منی کې پیل کیږي. ابدی او ټینګه مینه د پسرلی د نا پایښته مینی منی له ډیرعبوس والی سره سره یی منلی اوزړه وړونکی ښکلا لری داځکه چی ډیری مینی بر عکس چی له دوه ورځو ډیر دوام نه لری لکه د پسرلی سرو ګلونو پشانی ډیر ژر پانی پانی کیږي. منی ډیر نوره وړونکی فصل دی او شاید ډیر ښکلی.

شگفتــــی چـــون گل و پژمــــردی از مـــــن
خزانـــــم دیـــــدی و ارزدی از مـــــن

بد اوردی و گرنـــه بـــــا چنیـــــن نـــــاز
اگر دل داشـــتم مـــی بـــردی از مـــن

هوشنگ ابتحاج "سایه"

## د ژمي فصل تشريح کړي

او دادی ژمي پر چټك اس سپور په داسي حال کې چې ساتونکی يې باد او باران تر څنګ ولاړ وو، را ورسيد .د واټونو پر مخ غوړيدلي تيږونه يې د درنو او ټينګو ګامونو غږ تر غوږ شو او دچنار ژيړي او وچې پاڼي چې له منې پاتې وي تر پښولاندې يې وسولولې شوې له مينځه ولاړې.هغه کالي زموږ پر ښار سخت ژمي حکومت پيل کړی و.هر کله چې موږ له خوبه سر پورته کاوه تول ځايونه به موله واورو ډك ليدل .موټرونه لکه هغه ناروغ چې دسړښت له زياتوالي دتلوځواك دکنګل پرمخ نه لري کوکاري کول او په راکښو،راکښوله واټه تيريدل .په ټول ښار کښې سيزونکي ساړه حکومت کاوه کله چې به واټ ته شو زموږ پزې د سړښت له سختوالي داسې بريښيده لکه چې کنګل کيږي اود ساه کښلو توان به نه ولاسونو به مود کتاب ساتلو زورنه درلود هريوګام چې به مو اخيست ديوسړي يوی ښځي او يا کوچني پرځمکي لګيدو ته موپام اوښت ،دهريوه پښه به ښوئيدله ،ځکه چې پرېږ کنګل پر هر ځاي غوړيدلای و. پر ځمکه لګيدل او د کنګل شوي واورو پر مخ به غوړيدل ولي ژربه را پاڅيدل ته به وايي چې هيڅ کومه پيښه نده شوې خپلې لارې ته به يې دوام ورکول و. ځينې به سوزونکي کوکاري له زړه کولې او چيغه به اسمانونو ته پورته کيده ،

پښه به يې ماته وه، ښايي کوم يو لاس به يې زور موندلی وي کله چې پسرلي نژدې شو،کله چې د يا سمينو ګلانو وږم پزې ته

ورسید ،تول خوښ شو د پسرلي سلام ته لاړو د ښادی او ځواني فصل استقبال ته ولاړو ځکه چي ځمکه یو ځل بیا د زرېښت جامه لري کړه ځوانه شوه.هغه کالی سخت ژمی و.

## امید

یو ډیر خوش باوره او ساده دوست لرم ،په عین حال کی ژوند ته امیدوار.د موسیقی شعر او ادب پلوی دی،پر گل او بلبل دومره مین دی چی په واقعیت کی د نازك زړه مرغی له غرړه مست او بیخوده کیږی.

ویلی د دوستانو په محفل له هریخوانه خبری کیدی.حاضرینو به غایب اشنایان یو.یو صحنی ته راوړل او ترلنډی بد ویلو هغه به یی خوشی کول او د بل په لټه کی بد شول.

ورو .ورو خبره د زړه ارزو ته ورسیده.هر یو به څه ویل زه چی له ډیر وخته د گل او بلبل په راز مین وم ومی ویل دا زماارزو ده چی له نژدی نه د بلبل د زاریو او واویلا شاهد او سم او اوښکه د ارزښتناك ارمغان پشانی د مینی او وفا منکرینو ته وړاندی کړم .د حاضرینو ملنډی زه یی په تصمیم نیولو کی لا زړورکړم .سوچ می وکړ چی رښتیا یی ویلی دی چی امید یوه روښانه ستوری ده زړه ته روښنایی ور ښښی ،سرله سبانه هر څنگه چی کیږی ځان ښکلو گلانو ته چی د بلبل اوښکه په غیږکی لری رسوم یوڅاڅکی به ترینه وڅکم،ښایی همدغه څاڅکی زما د ژوند تومنه وی او ماله ځوریدنی وژغوری .ځکه چی ما د تول ایمان او عقیدی سره د وفا په نسبت لا هم شك درلود او هغه شپه لدی خوږی اندیښنی سره سباکړه او ځان می گلستان ته وغورځوه اما نه پوهیدم

کوم یو گل ته وگورم یوه ته وگورم هریوه ته مې چې کتل بل به یې گیله کاوه.سوچ مې کاوه چې مېن مرغۍ به لدې متکبرو گلانو نه کوم یو اختیار کړي؟و مې لید چې سپینه پروانه یو یو سره یې روغبړ کوي . ومې ویل هر یو چې پروانه وټاکه هماغه د بلبل معبود دی ولی ښکلې پروانه له هر یوه سره د زړه خواله کوله او تیریدله.اصلاً داسې بریښیده چې هیڅ یو هم نه خوښوي.نابېره یې سورگل انتخاب کړه او له سر یې پورته نه شوه دومره ودریدم چې پروانې خپل پاك وزرونه وپرانیسته او په الوتو . الوتو لرې شوه،هماغه وخت غمیدلې بلبل را ورسید او هماغه اورورین گل ته نژدې شو.له خوښیه لړزیدم او. ویل مې اوس به نایابه اوښکې ته ورسم ! هغوی دواړه سره سخت په رازونیازکی بوخت وو ومې ویل اوس چې هدف ته نژدې شوی یم ستړیا او انتظار خوړدی.په پاے کې بلبل هم ولاړ. لړزیدلاے او پریشانه مې د گل بوټې ته پلتې و وهله او د سپیځلې اوښکې په غوښتنه شومه گل له خندا بیخوده شواوخپل سریې له ما نه لرې کړ وی ویل،نن مې زړه بلبل د هرې ورځې پر خلاف زه یې په خندانه اوغوړیدلې‌خیره ولیدلم او نور اوښکه مې تویه نکړه.خپه او ژړیدلاے لرې شم له هرې خوا چې تیریدم د گل ښاخونه په خواشینې مې خندیدل.ما ویل خیر دی بله ورځ به راشم او خپله غوښتنه به ولتوم که داسې ژر خواشینې شم ما تې مې حتمي ده . شپه مې په زرهاو امیدونه تیره او سبایې خوشاله او امیدواره له خوبه پاځیدم.

دبیوفا ګلو نو پر خلاف مهربانه لمر خپله پاي نه منونکي رڼايي زمازړه پالني تـه لیـږلي و پـه بیـړه مـي لاروو هلـه اوځان مـي دامید ګلستان تـه ورسوه ګلویوښاخ خپل سرز مـا دتیریدولپـاره تیټ ولي همدا چي وي لیدبل ته مي پام دي دردونکي اغزي يي ژوبل کړم .دګلو یو بوټ ی ته چي لا د ځواني په میومست و نژدی شوم او ومی لید چي یو په زړه پوری بخار ورنه پورتـه کیږی فکر مي وکه چي نه ویل کیږی دمرغی اه وی!

لاس مي وړاندی کړ او ګلورینه خیره مي ورتـه مخ پورتـه ونیولـه ولی ومی لیده چي د لمر رڼا يي د بلبل اوښکه تر مـا مخکي غـلا کړی وه او د هغی ذری یی محو او لـه مینځه وړی دی .بیـا مـي وویل کوم اهمیت نه لری دا ټول زما د لټي او بی پر وایی لـه املـه ده.

سبا به له وخته ځان د ګل و ښنی وعورحوم او د هغـه ارزښتنا کـه اوښکه به له هغه نه غلا کړم.اما ښکلی وږمه لرونکی ګل وخندید وی ویل هغه څه چي غواړی موږپه وړیا توګه خپل اسمانی دوست تـه وښنه خو دا مزاحم مرغی لـه موږ لری کړئ . ومـی ویـل کـه چیری دا وفـا داره دوست ستا مزاحم وی نـو ولـی هغـه ځان تـه را بولی ستا د عشوی علت څه دی ؟ ویل شهرت که په عشوه هغه ونه ځوروم شاعران به زما په باره کی قلم ونه چلوی ، اما دا نـاپوه مرغی هم د موهوم امید پسی ور درومی .

ومی ویل اے عشو ه کره ګله ته چتیات وایی . سبا ګهیځ لـه وختـه تردی مخکی چی داسمان نجلی لاس په ملا پوری کړی مقصد تـه

رسیږم . د امید ګهیج می ورسید . ځان می ګلستان ( بڼ) تـه ګوزار کړ . ومی لید چی مرغلری دیو ګل ښکلی غاړی ته ښکلا ورکړی ده . لاسونه مـی ور وړانـدی کـړ او هغـه ښکلـی او ورږم لرونکی پیکر می چی د خپل خوځنده مرغلری ساتلو لپاره زیار ایست له تا نده ښاخ می بیل کړ او له ډیر شوق نه می یوه څاڅکه تری وڅکله.

خوښی او خندا کی می غوښته وتښتم چی زړه وړ نکی خواشینی په خندا کی وویل: هغه څه چی دی وڅکل هغه د بلبل اوښکه نه وه! ومی ویل نوڅه وه؟د ږلی څاڅکی چی د ګل پر لمن څڅیدلی وه.اه لعنت پر دی امید ! امید پر تـه د ژوند تیروتنی بل څه نه دی او یو عمر موږځان پسی را کاږی؟!!

## خداي پاماني

د زړه د رزا شیبه په شیبه ډیریده.د سترګی بانه لړ لړد اوښکی توئیدلوله مخنیوی ستړی کیدل.نژدی و چی وینه خپل طبیعی بهیر تـه بدلـون ورکـړی او نبـض خپـل منظـم تـکان لـه لاسـه ورکړي.خداے پاماني تـه څه بد مرغـه کلمـه ئې او څنګه مې زړه ستا د نوم له اورید وسره ریږدي.

انسه څه تیر ایستونکی او مرموز طلسم یی او څرنګه تول پخپلو پښو راځی او خپله خپلواکی تا ته سپاری.

موږ ولی لیوال شوا وولی دبشرژوند د دوستی او محبت شاوخوا طواف کوی؟
ایا انسان په فطری توګه ټولنیزموجوداودانس لپاره پیدا شویدی؟
ایا دا احتیاج او اړتیا ده چی وګړی سره نژدی او ما نوسوی او یا دا چی ایا دبشرپه ژوندانه کی کومه سوکالی شته اوکه هم وی په یوازیتوب کی ده که په ټولنی کی؟ موږ د اړتیا لری کولو لپاره له یو بل څه نه وینو او نه غواړو.
ایا کومه داسی ټولنه شته چی په افتراق وار زیږ او یا داسی کومه ټولنه شته چی په پاړے کی ټوټی نه شی؟
ایا له مړینی نه ویره د دی لپاره ده چی د انسان کوم څه چی خوښیږی ورنه یی بیلوی او که داسی ده نو د مړینی او بیلتون په مینځ کی تو پیر شته ؟
کله چی ګل رژیږی بلبل ویرکوی پتنګ د شمعی په سوزیدو ځان اورته غورځوی.زه به بیلتون کی څنګه ارامه پاتی شوم.یو ولس کلن وم چی د زو کړی له کلی نه می پلار دزده کړی لپاره ګاونډی ښارته ولیږلم .کله چی می د خداے پامانی لپاره د خپل پلار لاس ښکل کړ ډیر می وژړل پلار می په ویرجنه موسکا وویل:
وحشتناکه ګړی ده .کومه ګړی چی روزګار سره تړلی زړونه .له یو بله بیلوی په تیره بیا چی هغه بیلتون د یوی کورنی د غړیو تر مینځه وی ما تجربه کړی ده چی هیڅ کومه دوستی د کورنی له دوستی نه ژوره او ټینګه نه وی. وایی چی انسان هر کله د خپل

ماشومتوب دوری په صمیمیت نه پاتیږی پیښی سړی حوصله مندی او.نو. بیا ته زما دنیا لیدلی بوډا چی کلونه کلونه دی له کور کهول نه لری ژوند کړی د خدای پا مانی په دے ګړی کی بی تابی کوی. ملګر و د روح وحدت د فکر.توافق د اخلاقو تناسب د زړه سپڅلتیا زموږ د دوستی ناموس یی لکه د نوی مینهِ ناکی کورنی غړی پشانی یو تل ته نژدی کړی دی.
زه له تاسونه بیلیږم په داسی حال کی چی زړه او امید می له تاسوسره دی .او که چیری وروستی لیدنه هم وی ستاسو دوستی زما ډیر ښه یاد ګار دی چی بلی دنیا ته یی ځان سره وړم.






لیك لیكنه
(یالیكونه سرلیكونه)
مراسلات

# لیك لیكنه
یا
(لیكونه سرلیكونه)
# مراسلات

ناشر
آریانا کتب خانه دهکی نعلبندی




## ARYANA BOOK AGENCY

Books Deales, Printers & Publishers
Dhaki Nalbandi, Qissa Khawani, Peshawar City.
Ph: 213263